

عثمان اولس یار
محله برکے سیدو شریف سوات

# خېل او ویش

## د خېل پر قبیلوي سازمان او د ویش پر اقتصادي سیستم یوه اتنولوجیکي څېړنه


لیکوال

محمد ابراهیم عطایي



داجتماعي علومو علمي اوتحقیقي مرکز

د افغانستان د علومو اکاډمي

د عناوینو فهرست

# خېل او ووېش

## د خیل پر قبیلوی سازمان او د ویش پر اقتصادی سیستم یوه اتنولوجیکی څېړنه

# خپل او وېش

## د خپل پر قبیلوي سازمان او د بشر پر اقتصادي سیستم یوه انتولوجیکي څېړنه

**لنډه سریزه :**

د لومړنیو انساني ټولنو په باب ننني علمي څېړنې دا حقیقت په ګډه تاییدوي ، چې د دوی طبیعي چاپېریال دوی په دې مجبور کړي وه چې ګډ کار وکړي او د کار له حاصل څخه په ګډه ګټه واخلي .

زړه نړۍ زموږ په ذهن کې خورا ډېرې پوښتنې را اوچتوي او د هغې نړۍ دخلکوترمنځ ټولنیز- اقتصادي مناسبا ت کله ، کله رومانتيکي تخیلات موږ ته پیدا کوي . څرنګه چې د خصوصي مالکیت په څاپېره وهلې ننني مناسبات په خاصه توګه بیا په هغو ټولنو کې چې هلته د انسان څخه د انسان استثمار روان وي ، نو دا طبیعي خبره ده چې د لومړنیو ټولنو د خلکو ګډ ژوند دې د استثمار پالونکې ټولنې وفرد ته دا قضاوت پیدا کړي، چې هلته انسانان هوسا وو . په داسې حال کې چې هلته ، یعنې په لرغونې نړۍ کې د تولیدي قدرتونو د ضعف له کبله ژوند خورا ډېر سخت و. ولې د (زما) او (ستا ) د نفوذ ساحې لا نه وې تاکل شوې او ټولو د ( زموږ ) په مقدس شپول کې ژوند تېراوه .

د هغو خلکو او د هغو د ټولنې په باب معلومات د ننني علمي څېړنو له پاره یوه په زړه پورې موضوع ده .دنړۍ په‌هغو سيمو کې چې هلته لا د قبيلوي مناسباتو پاللونکې ټولنې‌موجودې وې ، د هغې زړې نړۍ دمنا سباتو خیره د یره رو ښانه‌پکې ميندل کیدای شي .

د امريکې هغه بومې سره پوستان‌چې دتکامل په لومړنې پړاوونو کې روان وو ، د متمدنو اروپا یانو لـه خوا يې ټولنه کډه‌وده شوه او کومې قبیلې چې له دغو چپاوونو څخه پاته شوې وې ، په هغو کې يو لړ اتنو ـ ګرافيکې کارونه سرتـه ورسيدل اوداسې مواد ورڅخه پيدا شول چـې د لرغونې نړۍ وډیرو مغلقـو پوښتنو ته يې جواب ووايه .

پـه آسيا کې همدا اوس داسـې‌ټولنې شته ، چې د قبيلوي مناسباتو په ساحه کـې ژوند کـوي او د دوي‌ټولنيز ـ اقتصادي‌روابط دهغې زړې اولرغونې ټولنې دپيژندنې له پـاره‌خورا ډيرداسې مثالونه برابرولی‌شي چـې د علمـې قضاوت معيارونه پراودرول شي .

دهندو کش او سليمان دغرو لمنې‌یا په بله توګه د اکسوس (آمو) او اندوس ( ابا سینـد ) تر منځ سیمې‌چې د تقريباً يوې پيړۍ را پـه دې خوا يې اتنو ګـرافيکې سـروې ګانې‌سو يدې ، داسې خورا ډير موادپکې موندلای شو، چې دپـه زړه پـورې‌اتنو لوجيکې څيړنو له پاره يې تر کار لاندې ونيسو .

دا سیمه چې په تقريبي ډول يې‌حدود پورته و ليکل شوه، دتاريـخ څخه وړاندې عصرونه او د تاريخ په دورانونو کې يې واقعات هـر وخت د خيرونکو پوهانو پاملرنه ځانته جلب کړيـده .

په دغو سيمو کې له خورا ډيرووړاند ي زمانو څخـه داسې طبيعـي شرايط برابر شوي وو، چې‌داو لينوانسانانو له پاره د ژوند امکانات پکې ميسر شي . دنړۍ ډير لر غو نـې‌ولسونـه همدلته اوسيدلي او پـه همدغو سيمو کې د داسـې ( منسوخ‌شوې ټولنيزو فورمـاسيونونو «۱» ) رڅراك ايستل کيدای شي ، چې دهغوپه څيړنه د بشري ټولنو د تکامل ډيرو بر له پيچلو پوښتونـو تـه جـواب برابر يږي .

(خیل ) او ( ویش ) یو د بل په رابطه کې سره واقع دوې موسسې دي ، چې لومړی د ټولنی روبنایی موسسه او دوهم د ټولنی زیربنایی موسسه په غیږ کې نیسی د لرغونی ړی هغه ټولنی چې نن له منځه تللی او میرا ثونه یی موږ په اوسنیو قبیلوی ټولنو کې وینو ، د دغو دوو سیستمو نو په چوکاټ کې اوسیدلی دی .

هغه او لنی ټولنی چې د(خیل)په سازمان کې اوسیدلی ، د دوی پرټولو ټولنیزو روابطو ګډوالی ( اشتراك )حاکمیت کاوه . د دوی خپلو یو ، د دوی کورنیو او د دوی معتقداتو ټولو په یوه ګډه منشا اړه درلوده .دغه روبنا پریوه داسی زیربنا ولاړه وه چې هلته هم هر څه مشترك وو .په ګډه کار کیدی او دګډ کار محصول د ټولو ترمنځ مشترك و ، نو ځکه د دغه محصو ل ویش هم برابر اومساوی و .

د دغو مناسباتو څېړنه موږ ته په ډاډ سره دا راښیی چې هر څومره په زیربنا کې بدلون راتی په هغه اندازه یی رو بنا یی منا سبات هم له یوه حال څخه بل حال ته را اړول .

د کار طبیعی ویش (٢) او دکار لومړی ټولنیز ویش (٣) او دکاردوهم ټولنیز ویش (٤) تر هغه وخته پوری چې اضافی محصول منځ ته راځی او دخصوصی مالکیت صحه لګول کیږی، لومړنی ټولنی د (خیل ) په لومړنی مرحله کې ژوند کوی او د دغی دوری ډیره اوږده زمانه د موروواکی (٥) ـ نظام په ګړی کی تیریږی . تر دی وروسته نو (خیل ) پلار واکی (٦) نظام ته داخلیږی ، چې هغه بیا په خپل وار د ټاکلو زیر بنایی روابطو محصول ګڼل کیږی .

دا د (خیل) او (ویش) موضوع د نړی دبیلو بیلو سیمو په هغو قبیلو کی پوهانو څېړلی ده ، چې په هغو کې د لرغونو ټولنو خصلتونه لا ژوندی پاته دي . یو شمیر پوهانو ددغو نویو تحقیقاتو مقایسه د هغو ولسونو سره کړیده ، چې په تاریخ کی یی لوی نومونه موندلی دی . د دوی د لرغونو آثارو او متونو په حوالوکی یی داسی حکایات او روایات

پیدا کړیدی چی د ننني تحقیقاتو سره په مقایسه کی داحقایق ورڅخه راوتلی دی چی په ټولو لرغونو ټولنو کی د(خیل) او (ویش) مرحله تیره شویده.

دغه ډول علمی څیړنی نوی کار دی ، او تقریباً د یوی پیړی را په دی خوا د قبیلوی روابطو په ارتباط دګډ مالکیت پر منشأ بنسټیز علمی فورمولونه طرح او وضع شول. ددغه مطلب په ارتباط ( ف انګلز وایی :

«... په ۱۸٤۷ کی د ټولنی ماقبل التاریخی دوره او د لیك د تاریخ څخه وړاندی دټولنی دټولنیز سازمان په ارتباط څه معلوم نه وو . له هغه وخت څخه چی څه وخت تیر شو یدی هاکس هاټیوزن (۷) په روسیه کی د ځمکی اشتراکی مالکیت کشف کړ .ماتیورر (۸) ثابته کړ چی دا ډول مالکیت ټولنیزه مبدأ او منشأ لری ،چی ټولو جرمنی اقوامو خپل تاریخی تکامل له هغه څخه را پیل کړیدی .په تدریجی ډول معلومه شوه ، چی دا کلیوال اشتراکی مالکیت هر ځای له هند څخه نیولی تر ایرلنډ پوری د ټولنی لومړنی شکل و یا دی . ددغی لومړنی اشتراکی ټولنی د ننني ( داخلی ) سازمان په هغه نمونه‌شکل چی لری یی (مورګان ۹ ) توضیح کړ او د قبیلی حقیقی مالکیت او په طایفه کی یی د هغی موقعیت وښوی » (۱۰)

زما په دی روانه څیړنه کی د(خیل ) او ( ویش ) پرسیستمونو د هغوی توضیح نه څیړم ، بلکی ددغودوو سیستمونو سره په ارتباط هغه مواد تر څیړنی لاندی نیسم ، چی اتنو ګرافیکه ساحه یی څو کربښی وړاندی ولیکل شوه .

د هندو کش او سلیمان د غرونو لړی د نری د ډیرو اولینو خیلونو اوسیدنځایونه دی . همدا رنګه دآمو او اباسیند حوزی د لومړیو اقتصادی غورځنګونو میدانونه وو . کوم اتنوګرافیك مواد چی له دغو سیمو څخه راټول شویدی، په اتنولوجیك ساحه کی د هغو څیړنه نو مور دی علمی داډ ته رسوی ، چی ددی ځای مواد Data ) داکاډمیك څیړنی له پاره خورا زیات تیپیك ارزښتونه لری .

په اتنو ګرافیك ساحه کی پردغو موادو د یوه بڼه وړاندی وخت څخه

کار پیل شویدی . په نولسمه پیړۍ کی د اروپا بورژوازی پوهانـو کار کړیدی خو څرنګه چی د کار متود یې علمی نـه و ، نو زیاتی تیر وتنی یی کړیدی .

په هغو کسانو کی چی دغه کاریې دعلمی متود په پیروی کړی او دلوی شهـرت خاوند دی ، هغـه شوروی (م ـ ګ اسلانوف ۱۸۹۷ ـ ۱۹۷۷) دی. خو څرنګه چی دا کار ډیره محیطی اشنایی غواړی، نو هغه پخپله (۱۱) هم سپارښت کړیدی چی محیطی لیکوال باید دا کار وکړی . دا چی اسلانوف د ځینو اقوامو او قبایلو د اوسیدنځایونو یا دقبیلوی واحدونو په نوموکی ډیری لږ تیروتنی کړیدی د دی باعث نه ګرځی ، چی موږ د ده علمی کار له نظره وغورځوو (۱۲) .

دغه پوه د (خیل او ویش ) پـه باب پر علمـی متود بنأ داسـی مواد څیړلی دی ، چی هغه علماً موږ تـه د نویو څیړنو په لارکی دلارښوونکی حیثیت لری . که د دغه پوه د څیړنی مفردات، چی ده په ډیره لنډه اوتنګه ساحه کی څیړلی دی په تفصیل سره وڅیړو، نودنوموړی هغه سپارښت ته بـه مو مثبت جواب ویلـی وی چـی محیطـی لیکوال باید په دغه تاکلـی مورد کی کار وکړی .

دا چی د قبیلوی تولنی په ایجادکی ( خیل ) څـرنګه د لومړی عنصر په توګه اغیزه ناکه برخه واخیستله په یوه نسبتاً پراخه ساحه کـی به پهمقایسوی توګه وڅیړل شیدخیل)په ترمینولوجی پوری به هغه نسبی ( اتنیك ) واحدونه هم یو څه توضیح کړو چی په وروسته کی دقبیلوی سیستم دجوړښت ودانی پر ودریدله . د ( خیل ) په سیستم کی د وینـی د اشتراك عملیه او د مورواکی د وران د خیلونو دبقایا وو څرك به داوسنیو قبیلـو د ځینی نومونو پـه ارتباط دڅیړنی عمده برخه وی .

همدا رنګه د ( ویش ) په برخه کی موږ داسی اتنو ګرافیك مواد پـه لاس کـی لرو ، چی هغـه د لومړی اشتراکی نظام ډیر څرګند بقایا بلل کیږی . په یو شمیر قبیلو کی دمځکی ویش او د مځکی له دغه ویش سره

دکوروئو بدلول موږته دژورو څیړنوزمینه برابروی. دلته به موږ د کولای شو چی د ف ـ اینګلز دعغه قول تائید لـه پاره ډیر تازه او ژوندی مثالونـه وړاندی کړو ، چی پـه پورتنی اقتباس کی اشاره ورتـه شوه ، هغـه ویلـی و (( ... داکلیوال اشتراکی مالکیت هر ځای له هند څخه نیولی تر ایرلینډ پوری د تولنی لومړی شکل وو ... ))

دپورتنی توضیحاتو څخه وروسته به نو اوس وا صلی مو ضو ع ته ور داخل شو اوهغه مفردات چی دلته یی په لنډه توګه یادونه وشوه ،تربیلو بیلو عناوینو لاندی په تفصیل سره راوړو :

## خیل

### دخیل اتنیک جوړښت

خیل یو نسبی سیستم دی ، چـی دقبیلوی تولنی لومړنی هسته بلل کیږی . هغه مهال چـی انسانانودوحشت (۱۳) دوره پای ته ورسوله ، نو دبر بریت (۱٤) په دوره کی یی دخیل جوړښت ته ګام پورته کړ.

((خیل یاپـه لاتینـی اصطـلاح Gens (۱۵) د(یونالوان۱٦) کورنی دجوړښت په وخت کی پـه ابتدایی بڼه منځ ته راغی . داخیل دیونالوانی واده په کړی کی دیو ی معلومی (انا)معلومداره اولاده وه ځکه چی دکورنی په دی شکل کی پلاروالی نه دی معلوم، نو یواځی دښځی پـه سلسله نسب ( زی یا خیل )معتبـر دی ۱۷ ))

د وینی اړیکی په نسبی رابطـه کی مقدس ځای لری اودخیل په کړی کی هغه کسان رښتیانی او اصلـی خپلوان ګڼل کیږی ، چی په و ینـه سره شریك وی .

دوینی په اړیکی سره خپلـو ان خیلونه دموروا کی په زمانه پـوری اړه لری ، خو په پلار واکی نظام کی هم خیلونه موجود وی ،ولی نسبـی پیژندنه دپلار پرلاروی اودا نو هغه مهال دی چی پلاردمور په شان معلوم وی.

خیل په خپل عام مفهوم، چی دلته یی موږ دقبیلی په مفهوم راوړیوه ژوندی پدیده ده چی زیږی ، تکامل کوی اوله منځه ځی . دا پـدیـده د

کوچنیوالی په حالت کې محدوده وی، بیا پراختیاکوی خوله منځه ولاړه شي.
دوحشت په دوره کې چې ګـله ای ژوند په تولنیز ژوند تبدیل شو، نو
کلان Clan (۱۸) منځ ته راغی او دانو دخیل له پاره دهغی معنـا
بندونکی نوم دی چې ځانته ځانګړی صورت بندی لری : ((دتولیدی قوتونـو د
پرمختیا په اثر دټولنې سازمان بدلون مومـی . کلان چـې یوه پرېښور لاره
تولیدی تولنه وه، د انسانی ګلوځای یی ونیوی . دیوه کـلان غړی دکـار
دطبیعی تقسیم له مخې چې دنارینه او ښځو دکارساحی بیلې شوی وی په ډله
ایز کارکی چې داشتراکی ټولنې پـه عمومی وظایفو یی اړه درلوده یوه بل
اړیکی سـره وساتـل ..... لومـړنی کلان ډیر وړوکی ؤځکـه دتولیـد ی
قوتونو زیاتوب نورددی نیازنه درلودچې دوی په ډیروغټو انسانی ډلوکی
ژوند وکړی ولی بیاهم داسی کارونه وو چې بایدپه غټوډلو سرته ورسیږی،
لکه دلویو حیواناتو ښکار او داسی نور . دهمدغه ضرورت پربنا د ځـو
کلانونو دیو ځای کیدو څخه دیو بـل غټ واحد دجوړیدو له پاره ګام مخ ته
واخیستل شو ۱۹ . ))

## دا تنیک جوړښت دری واحد ونه

په عمومی ډول چې په لرغو نـو قبیلو کی څیړنه کیږی نودری عمده
واحدونه پاملرنه جلبوی .

دا واحد ونه هریو دټولنیـــز واقتصادی اړیکو پربنا منځ ته راغلی
دی. ددغو واحد ونو جوړښت دیوچپه هرم په شان دی چې راس یـــی
لاند ی او د پورتـه خـوا تـه هـره پوړی یی دلاندی په نسبت لو یـه
او پراخه وی .

خیل ، ټبراو کام دري عمده واحد ونـه دي چې تقریباً توله هغه قبیلی
چې په منظم ډول یې قبیلوي انکشاف کړید ی ، دغه دری واحدونه یـــی
درلودلی دی خود دغو واحد ونو هـرواحد بیا په خپل منځ کی نورکوچنی
واحـدونه لری چـی اکثراً د قبیلـی دانکشاف سره ددغو عمده اوفرعی
واحد ونو ترمنځ حـدود مغشوش ښکاره کیږی .

دمثال په ډول ، دا دری واحده په لرغونی یونان کی د(جینیا ، فریتری او کانفدریسی ۲۰) په‌نامه، په روم‌کـی د (جنیتز ، کیوریا او ناتیو یاـ نیشن ۲۱) په نامه راغلی دی .

یونانی جینیا او رومی‌جینتز زموږدخیل سره برابر دی‌چی ددغوجینیا وویا جینتز ونو یا خیلونو له یوځای کیدو څخه په یونان کی فریتری، په روم کی کیوریا او په پښتنو کی‌دټبر واحد تشکیل شوی دی . دیو نانـی فریتریو، رومی کیوریا وو اوپښتنی‌ټبرونو مجموعی ته په یونان کـی کانفدریسی ، په روم کـی ناتیویـا(نیشـن) اوپه پښتنو کـی کام‌وایی. په عربی قبیلوی تولنه کی (عشیره،طایفه ، قـوم یا امت (۲۲) او پـه روسی قبـیلوی ټـولنه کـی (رود،،پلیمیا او ناځو نا لست ۲۳) همـدغه دری واحده دي چـی دقبیلی نسبـی‌ساز مان پـر ولاړ دی .

ددغو درو واحدونو خصوصیتونه په دې ډول خلاصه کیدای شی، چی : «دخیل په مرحله کی دټولو تولیدی‌فعا لیتونه سره مشابهه وی .پـه دوهمه مرحله کی چی د خیلونو د یوځـای کیـدو څخـه ټبر منځ تـه راځـی ، نودهغو دجوړ ښت عـامـل‌داوې چی خیلونه دپخوانی تولید په ساحـه کـی دمحدویت سره مخامـخ‌کیږی او په نویو ځو پیل کوی . په دغه مرحله کـی مهاجر تونه اودیوه‌محل څخه بل محل تـه د اقتصـادی فعالیت دساحی پراخول‌شامل دی ۲٤)دریمـه مرحله چـی د کام د تشکـل حالت ښیی ، خصوصیت یی دادی چی‌د اقتصادی فعالیت ساحه یی تر ټبر یـز حالت پـر اخیږې او پر ټولنیزوروابطو یـی د خصو صـی مـا لکیت سیوری لویږی او ورو ورو د دولـت‌سازمـان پـه پیکه ډول خپله څیره پکـی څر ګندو ي .

په لرغونی اریایی ټولنـه کــی‌شپږ نومونه موجود وه چی دوه ،دوه یی د یوه واحـده سـره برابر دی ،(کهولا ، ګوترا ، ګوشتی ، ګراما ، ویسه ، جانـا ) څیړونکو پوهانو ددغو نومو نو مفا هیم داسـی راوړی

«کهولا ـ په نغری شریك
گوترا ـ په غوجل شریك
گوشتی ـ په څرځای شریك
گراما ـ په کلی شریك
ویسه ـ دکلیو په مجموعه یالوی کلی شریك
جانا ـ په یوه جنگی کلا شریك ۲۵»

دغه شپږ واحدونه په دی ډول په درو واحدونو تبدیلیدای شی : کهولا او گوترا دخیل ددوری یوواحددی ، ځکه په دغه وخت کی تولیدی فعالیت زیاته پراختیا نه وی کړی‌اوپه محدود ډول حیوانات چی دخوړ لویا محدود کار له پاره روزل کیږی‌په یوه غوجل کی درول کیږی او دخیل غړی لادومره نه وی زیات شوی‌چی کو رونه یی سره بیل شی، نوځکه پریوه نغری را ټولیږی. خو په دوهمه دوره کی چی گوشتی او گرامااحتوا کوی.ددوی‌څرځایونه‌مشترك وی او هر کله چی دڅرځای مسئله‌منځته راشی‌نوداخبر سمه‌ورسره‌ملگری ده چی کوچی اوشپنی ژوند پیل کیږی او ددی ژوند یوه لازمه هم لیږدید نه (مهاجرت) دی او مهاجرت دټبر دمر حلی خصو صیت‌دی . داچی دگراما په برخه کی ویل کیږی چی هغه د یوه کلی اوسیدونکی وونو داهم کیدا ی شی چی دټبریز حالت دثبوت یوبل‌دلیل‌شی.ځکه دکوچیانو سیار کلی هم شته‌او دبلی خوا کرنه په دغه مرحله کی‌دومره پراخیږی ، چی مسکون کلی هم پر جوړشی ، نو دهغه اوسیدونکی دیوه ټبر یا قبیلی وی چی دغسی خصو صیت تر اوسه هم‌دکوچیا نو په کلیو کی او هم په لیرو مسکو نو کلیو کی لیدل کیږی.

دویسه او جانا په برخه کی‌پخپله ددغو شپږ وواحد ونو طراحان شیږونکی پوهان هم وایی چی دایو واحدو او ددغو مشرو یسپاتی یارا جان یو موقف درلود (۲٦) او کیدای‌شی چی موږ دا ددغی آریایی ټولنی دکام دمرحلی په حیث وپیژ نو چی‌دټبر ونو له مجموعی څخه تشکیل شوی وو او تریوې جنگی کلا لاندی‌به متعدد کلی واقع وه .

دپښتنی قبیلو په باب چی ددغو درو اتینك واحدونو دتشکل جوړښت یی څرنگه دی، یوه مفصله څیړنه‌غواړی ، خوزه دلته یوه‌لنډه توضیح وړاندی کوم :

دخیل په مرحله کی پښتانه دنورو آریایی اقوامو سره گډ دی‌چی دهند وکش او سلیمان دغرونو په لمنو کی اوسی . هغه کلمات او دهغو ریښی چی دبا ختری آریایانو دهندو اروپایی ژبو سره د مشابه مفاهمو در لوونکی دی (په راتلونکی‌مخونو کی به دا برخه تر مستقل عنوان لاندی راشی) د دغه مطلب پوره شاهدی ورکوی ، چی دخیل مرحله یی له نورو آریایی قبایلو سره یو ځای تیره شویده .

دټبر دجوړښت په مرحله کی‌قبیلوی مهاجرتونه او لیږدیدنی یی پوره معلومی دی چی فولکلوری‌افسانی اوحتی لیکلی‌متون یی‌موجود دی. دغوړی مرغی (۲۷) شخه دختیځ‌هندوکش دختیځو دروتر خولو پوری دخښی (۲۸) قبا یلو لیږ دیدنی یی‌دټبر یز حالت پوره څرگند وی‌دی .

دکام د تشکل حا لت چی یی‌د یونانی کنفدریسی یا رومی ناټیو د حالت سره برابر دی ، خصوصیات‌یی کاملاً مشابه دی . په یونان کی د کنفدریسی له گیډی شخه ددولت موسسه راوزیږ یدله . لکه څرنگه چی کانفدر یسی دفریټریو مجموعه وه ، نو دلته کام دټبر ونو مجموعه وه او په بعینه هغه ډول چی دیونان (اگورا ۲۹) جرگی کوم خصو صیت درلود ، نودلته هم‌دمیرویس او احمد شاه دانتخاب جرگی هغه ډول وی . هلته چی‌داگو را په فیصلو کی د دولت پیکه څیری ځای را څرگند کړ ،نودلته هم موږ وینو چی د ابدالی احمد شاه دانتخاب له جرگی سره‌ددولت سازمان ځان را څرگند کړ . (دلته یوه لنډه یادو نه ضرور بولم‌چی کله د احمد شاه د انتخاب له جرگی سره د دولت د سازمان یاد ونه کیږی ، مطلب د دولت دهغه سازما ن شخه دی چی مستقیماً یی‌دقبیلی د انکشاف پر لیکه ځان‌را څرگند کړی وی . )

## خیل یا زی

خیل دیونسبی واحدپه توګه یواولنی نوم دی ، چی تر اوسه استعما لیږی . په پښتنو او بلوڅوکی دخیل کلمه یوشان مفهوم لری خو په هغه اصلی معنا چی دیوکو چنی او او لنی واحد له پاره باید استعمال شی ، اوس یی داستعمال ساحه یو څه مغشوشه شویده او په هغه ځای کی چی دتبر کلمه باید راشی ، هم دخیل کلمه استعما لیږی . همدا رنګه دخیل پر ځای دتبر کلمه راځی .

په دی ډول هغه ټول اصطلاحی نومونه چی دنسبی پیژند نی له پاره په ژبه کی موجود دی داستعمال محل یی د پخوا سره توپیر لری او د دی علت به هم داوی چی دلته قبیلوی روابط د زوال په حال کی دی او هر ځای چی قبیله له منځه ځی ، نو لومړی دهغی د پیژند نی له پاره د واحدونو دمفاهیمو حدود مغشوش شی او بیا نو دا کلمات اصلاً داستعمال څخه پسی ولویږی .

د خیل د کلمی سره په برابر مفهوم د (زی) کلمه هم استعمالیږی. په ټولو پښتنو خیلونو کی دادوه نومونه پیژند لی ځای لری ، لکه سلیمان خیل یا یوسف زي .دغه خیل اوزی په عین مفهوم په بلوڅوکی هم استعما لیږی،لکه د(ارتپال بلوڅو) په خیلونوکی «برام خیل او اکازی ۳۰» .دبلی‌خوا‌څخه دغه خیل اوزی چی دنارینه وو د نومونو په لاحقه راځی ، لکه سلیمان او یوسف چی د نارینه وو نومونه دی اوپه یوه پسی دخیل اوپه بل پسی دزي لاحقه تړل شویده ، نوداسی خیلونه هم پیژنو چی دغه دخیل او زی لاحقی دښځو په نومونو پوری وی ، لکه دا پر یدیو د زخه خیل قبیله چی د زخی انا په نامه یاده شوی یا رانی زی چی د ښځینی قبیلو یو لوی ښاخ دی او د رانی انا په نامه نومول شویده .

دخیل کلمه د انګریزی د (Kin) دکلمی سره برابر مفهوم ورکوی او Kinship په نسبی رابطه خپلوی ته وایی . په‌انګریزی

کی دغه دګین د کلمی سره دیو (ډال) په الحاق چی Kind راشی ، نو دخیل مفهوم یو څه عاموی او د «ډول ، راز اوخیل ۳۱» معنا ورکوی . په پښتو کی هم دخیل کلمه په دغه عام مفهوم استعمالیږی .په دغه مورد کی چی سر بیره دخیل له نسبی مفهوم څخه په عام مفهوم دخیل کلمه استعمال شی، نو په خاصه توګه په غزنی او پکتیا کی په عامه مکالمه کی داسی استعمالیږی ، مثلاً : که په پکتیاکی دیو چا څخه داسی پوښتنه وشی،چی : (دمنډ هیر په ځنګل کی څه خیل ونی زیاتی شته ؟)نواوریدونکی به هیږی ، چی دلته یی مطلب د ونو له ډول څخه دی . یا که په غزنی کی د یو سړی څخه پوښتنه وشی ، چی : (په جرګه کی دی څه خیل خبری واوریدی ؟ نودلته هم اوریدونکی پو هیږی چی دپوښتو نکی مطلب له (څه راز- خبرو ) څخه دی .

لکه د خیل کلمه چی د خپل اصلی مفهوم څخه چی هغه په نسبی موردکی استعمال دی په عام مفهوم هم راځی نو د زی کلمه بیا داسی نه ده او یواځی په هغه خا ص نسبی مفهوم کی استعمالیږی، لکه دانګریزی Gens جینز کلمه چی یواځی د «خیل ، زی اوقبیلی۳۲» له پاره استعمالیږ ی .

په دی برخه کی ژوره څیړنه دا نتیجه په لاس راکوی چی په نسبی مورد کی دخیل تر کلمی د (زی)کلمه لرغو نی سابقه لری . په خاصه توګه که ددغی کلمی ریښی په هندواروپا یی او لرغونو باختری ژبوکی وڅیړو، نو دا مطلب به په ښه توګه و ثبوت ته ورسیږی .

**په هندو اروپایی او لرغونوباختری ژبوکی د(زی) دکلمی څرک**

د ( زی)کلمه چی په نسبی رابطه استعمال شی ، نو د سړی ذهن ته یی په نژدی توګه د (زوی)دکلمی مفهوم حاضر یږی . که څه هم دغه د زوی د کلمی مفهوم به د(زی) په کلمه کی پروت وی ، خود دغی کلمی ا صلی ریښه ډیره ژوره اوخورا ډیره لیری ننوتلی ده . په هغه نسبی مفهوم چی نن د(زی) کلمه استعمالیږی ، نو ریښه

یې د ټولو هندو اروپا یي او لرغونو باختري ژبو دغو کلماتو سره .نو له
په خوله ځي چې د نسبي مفهوم لـه پاره استعما لیږي .

له څیړنوڅخه دا نتیجه په ځغرده پـه لاس راځي چې بنایي دغـه د
(زی) کلمه او هغه کلمات چې پـه ټولو هندو اروپا یي او باختري ژبو
کـې د دغـه مفهـوم له پاره استعما لیږي او ژبني جوړښت یې هم کاملاً
سره نژدې دی ، دغې ژبـې څخـه راپاته ګډ میراث به وي چې دیو کل
پـه ډول د دغـو ټولو آریایي ژبـومور ګڼل کیـږي .

« د جینز Genes لاتیني کلمه د یونا نـي د جینـو س Genos
کـلمـې مـراد فـه ده اودواړې‌کـلمې لـه یـو ی ګـډ ی
آریایي ریښې ګـن ( Gan ) څخـه مشتق شویدی . په جرمني کې چـې
دقاعدې سره سم آریا یي (ګ) پـه (ك) اوښتي دی ، نو علته دا کلمـه
دکن ( Kan پـه ډول لیدل کیږي اومعنا یې زیږول (۳۳) دی .

جینز ، جینوس او د سانسکر یت‌جاناس Janas او دګوتي ژبي او
انګلو ساکسون کین Kyn او دانګریز ی ژبي کن Kin ) او
دمنځني پاس جرمني کوني Kunne ګرده او یو شان د ( زی ) قومیت او
نسب مفهو م افا ده کـوي . » (۳٤) (زی) پـه معـروفـه (ی) او ( ز )
دوی کلمې چـې د زیږ ولـو مفهـوم‌ورکـوي ، آریایي کلمـې دي چې‌په
پښتو کـې په عین شکل او په دري‌کـې یـې د (زاید ن) د کلمې مخفف
شکل غوره کړید ی .

د پښتنی قبیلو کوچیان د پسرلي‌موسم تـه د ( زا )موسم وایي او دا
کلمـه پـه هغـه مفهـوم ادا کو ي‌چـې پـه پسر لی کـې د دوی میږې
لنګیږي .

پـه یو نـا نی ژبـه کـې جیني Gyne اوپه سلاوی ژبـه
کـې زینا Zena دښځې معنا‌ورکوي او ښځـه د زیږ ولو دعملیې
پـه رابطه د (زا) له کلمـې سـره‌اړه لـري .

د ښځـې د کلمې په ژبني اړ یکې‌کـې با ختر ی آریا یي ژبې چې د

اروپا یی ژبو سره نژدی لفظی اړیکی لری ، نو زموږ د بحث په مورد کی یی کلمات خورا ډیر مشابهت سره لری .

« په سوغدی ژبه کی ( زن ـ زت ) په یغنوبی ژبه کی ( زان ) په مونجانی ژبه کی (زینکه ) او په اویستایی ژبه کی (جینی) تو له د ښځی مفهوم افاده کوی ۳۵». دغه نومونه دپارسی او دری د (زن) او د پښتو د(جینی یانجلی یا جینکی ) د کلمو سره په عین مفهوم پر تله کیدای شی .

(زی) دنسبی پیژند نی په ارتباط(زی یا زا) د زیږولو په مفهوم اوپه دی لړکی (زن) او (جینی) د ښځی په مفهوم چی د زیږولو د عملیی ظرفی حیثیت لری ، په هندو اروپا یی او تولو باختر ی ژبو کی د نسب سره اړیکی لر ی .

د(زی) دکلمی مفهوم ډیر لرغونی بریښی او دصلبی قرابت و ډیرو اولینو وختونو ته رسیږی. هغه مهال چی د نسب رابطه په ښځینه برخه کی پالل کیده ، نو د (زوی) د کلمی اصلی مفهوم دا په پوره توګه افاده کوی چی هغه د ښځی له خوادزیږید نی د عملیی یو محصول دی . په دی ډول نو په هغه اولنی مهال کی (زوی) یوازی وښځی ته منسوب بلل کید ی ، ځکه پلار لا وتا کلی مقام ته نه ورسید لی او دا نو د انسانی تولنی یوغټ انکشاف و ، چی دزوی رابطه دمور څخه علاوه دپلار خواته هم انتقال راوموند .

دنسبی رابطی په لحاظ (زی) په پښتو ژبه کی موجود دی او دپورتنی څیړنی څخه ویلای شو چی داکلمه دډیرو لرغو نو زمانو د قبیلوی مفاهیمو بو په زړه پوری میراث دی چی دادی تر اوسه په پښتنو او بلوڅو کی په یوه شان ساتل شویدی .(زی) په حقیقت کی د نسبی قرابت یو پوخ اصل دی ، نو ځکه په هند اروپایی ژبو اولرغونو باختری ژبو کی یی ریښه سره مشترکه ده .

## په قبیلوی تشکیلاتو کی څلور اصله

« دپښتنو قبا یلی تشکیلات پرڅلورو اصولو مبنی دی :

۱) په وینه (نسب) ۲) خپلوی (دلور خور ورکړه) ۳) ګونډ ی (پره چنبه ) ٤) الحاق ۳٦» پورتنی څلور اصله یوا ځی په پښتنی

قبیلو کې نه ، بلکې هر ځای چې تولنیز ژوا بسط د قبیلې تر تسلط لاندې واقع شوې دي ، نو دغه څلوراصله په کامل شباهت یالږ و ډیر توپیر یکې لیدل کیږي .

په دې روانه لیکنه کې دغه څلور اصله چې په پښتنې قبیلو کې لیدل کیږي دنړی دځینو نوروقبیلو له دغسې اصلونو سره په مقایسه څیړل کیږي .

دغه څلور اصلونه په هغه وخت کې چې د خیل بسیط واحد نافذوی په یوشان، خوکله چې دتبر اوکام واحدونه منځ ته راځي نوپه شکل کې یې یوڅه بدلون راځي ، خو ماهیت یې هم هغسې وي . داتر هغه مهاله چې دقبیلې موسسه له منځه ځي ،په تولو قبیلوی روابطو کې خپلې اغیزې ژوندې ساتي . دلته به ددغوڅلورو اصولو څخه هر اصل په جلا توګه وڅیړو .

**۱) وینه :**

دوینې خپلوی دخیل دمرحلې عمده اومهم اصل دی . دګډې وینې خپلوان توله هغه کسان په ځان را کښیباسي،چې دمور په خوا کې یې رګې سره ګډوي . داهم دمور واکې د زمان خبره ده چې ماما نږدې خپل دی . ځکه په دغه وخت کې مور معلومه وی ،خوپلار معلوم نه وی او د مور ورور هم پیژندلې ځای لری .

د پلار واکې په مرحله کې بیا هم د وینې خپلوی له منځه نه ځي ، بلکې دپلار دخوا خپلوان هم دوینې خپلوا ن ګڼل کیږي . دوینې اړیکې مقدس دي او د نسب توله بنا پر دغه اصل ولاړه وی . هغه کسان چې دوینې خپلوی سره لري ، نودوی دغچ ا خیستلو پر وخت دا مکلفیت پر غاړه لری چې دوینې دشریك ننګه وکړي .

په پښتنې قبیلو کې دوینې خپلوی کاملا پالل کیږي . دا پالنه د پلارواکې د روابطو تابع ده، یعنې د پلار پرلار خپلوان چې دتر برو نو په نامه یادیږي یو دبله دوینې خپلوان ګڼل کیږي ، خو د پښتو په فولکلوریك ادب کې ځنې داسې مواد شته ،چې هغه

د مور واکی د نظام په رابطه د وینی خپلوی څرګندوی . مثلاً ، دا متل :
« د خوریی سر چی یی جوړاوه د ماما دایی ورته ایښی ؤ . »
« د ورمیږ وینه ۳۷ » ځانته خاص مفهوم لری چی د پښتنی قبیلوی د تعاملی حقوقی روابطو سره خاصه اړه لری .
مثلاً ، دښځی او مځکی په مسئله کی چی د دوو کسو ترمنځ دعوه وی، نو جرګه « د اوو سرونو پریکولو۳۸ » لوړه یا قسم ورکوی او په بدی کی هم غچ ( انتقام ) د ورمیږ د وینی په ګډون اخیستل کیږی .
دغه عرف چی غچ باید دو رمیږ د وینی په رابطه واخیستل شی ، د نړی د نورو ولسونو په قبایلو کی هم پیدا کولای شو .
د امریکی د سرو پوستانو د ایرو کوایس خیل روابط چی مورګان څیړلی دی ، نو دوینی رابطه یی د یو عمده اصل په حیث راوړی ده . « .... دا د خیل دغړو پر ذمه پرته وه ، چی یو د بله سره حمایه کړی او د بدی په وخت کی یو دبله د غچ اخیستلو له پاره مرسته سره وکړ ی . که به کوم چا د خیل پر یوه غړی تیری وکړ ، نو دا پرګرده خیل تیری و . که به تر خیل د باندی کوم چا د خیل غړی مړ کړ ، نو دا پر ټوله خیل تیری ګڼل کیدی . دا د وینی دخپلوی د تعلقاتو څخه د وینی د غچ اخیستلو هغه پر ذمه پرته خبره وه، چی دایروکوایس د خیل هر غړی پر خپله ذمه فرض ګڼلی وه ۳۹ »
د لرغونی یونان په قبیلو کی دوینی خپلوی لوی اومقدس ځای درلود د یونان د قهرمانی وختونو ادبیات اومیتولوجی یوه زیاته برخه پر دغه اصل تکیه ده چی خیل د وینی په رابطه موجود دی او د وینی غچ د ننګی یو اصل دی. فردریك انګلز د « ګروتی ۴۰ » د هغه بیان سره چی د یونان په تاریخ کی یی کړیدی او د اتینی خیل په ارتباط څیړنه لری دیونانی خیل په روابطو کی دا مسئله پر هغه ځای تفسیروی ، چی خیل او ټبر څرنګه سره واقع وو ، دی ودی مسئلی ته داسی اشاره کوی :
« فریټری ( ټبر ) چی یو شمیر خیلونه په ځان راکښیباسی ، داخلی

ارتباط یې د خیل په شان ټینګ نه دی خو وینوچې دخیل غوندې دخپلوۍ حقوق او وظایف پر غاړه لري مخصو. صاً دا چې ځینې تاکلي مذهبي مراسم یې په ګډه پر ځای کوله او کـه بـه ګـلـه دفـر یـتـر ی یو غـر ی چا وواژه ، نو د فریترۍ هر غړی دا حق درلودچې په مدعي دعوه وکړي. ٤١ »

د وینې خپلوۍ چې د صلبي قرابت مهم اصل دی ، د پخوانیو اقوامو څخه د لرغونو جرمنیانو په برخه کې دیومهم اصل په توګه یادیږي. دمشهور رومي مؤرخ (تاسیتوس٤٢ ) دا لاندې عبارت په دې برخه کې چې له جر- منیانو څخه رغیږي ، یو ښه دلیل دی.« ... د مور ورور (ماما) خپل خوریې ته د خپل زوی پـه سترګه ګوري .ډیر ځله داسې فکر کیږي چې د ماما او خوریي ترمنځ دویني رابطه دونه مقدسـه او ټینګه ده چـې د پلار او زوی رابطه نه پسې رسیږي . کلـه چې د ضرورت پر وخت یو څوك پـه (یرغمل ٤٣ ) کـې اینبودل کیـږي ،نو د یو چا ترسکه زوی د هغه دخور زوی ته ترجیح ورکول کیږي . ٤٤ » د تاسیتوس د پورتنی بیان پـه ارتباط فردریك اینګلز دموضوع دښه تفسیر له پاره د یونانیانو دقهرماني د عصرو اساطیروتـه اشاره کوي اوهلته د ( میلیاګر ) داجرم توضیـح کوي ، چې هغه د خپلې مور ورونـه ( ماما ګان ) وژلي دي او د ده مـور ( التیـا ) دخپل زوی ګناه ډیره ستره بولي او د هغه د مرګ خواست کوي او دا خواست یې هم قبلیږي . (٤٥) په دې ډول نو د وینـې خپلـوۍ په ټولو لرغونو قبیلو کې دقبیلوی روابطو د ناموس حکم لري او پـه پښتني قبیلو کې هم د خپلوۍ لویـه بنا همدغه د وینې پر اصل تکیه ده.

**٢) خپـلـو ی :**

د قبیلو روابطو پـه ساحه کـې خپلو ی دا ده چـې یو نـژدې خیـل و بل نژدې داسـې خیـل تـه چـې خپلو ی سره ولري ، ورنژدې شي . د ځینو خیلونو په با ب فولکلوریك روایات شته ، لکـه : د کاکړو او شیرانیانو تر منځ خپلوۍ « شیـرانی د شـر خیول مشر زوی او د کاکړو خوریې و ، دې د مشرۍ په معاملـه کې دخپل پلار څخه مرور شو او خپلو

ماماګانو کاکړو ته لاړ ، نو له هغه وخته څخه شیرانی په نیکه بده د کاکړو سره شامل شول (٤٦) .

په ځینو مواردو کی دیوه خیل ښځی په ګډه دبل خپل نارینه وو ته واده شی یا د دوو خیلونو تر منځ دیری ښځی سره واده شوی وی ، نو پر دغه اصل یی د خیل خپلوی ټینګه شوی وی .

داسی خپلوی ډیر ځله په هغو وختونو کی منځ ته راځی ، چی د دوو خیلونو تر منځ ( هدماتی ٤٧ ) شوی وی . د هدماتی بدی هغه جبیره چی د ښځو په ورکړه وشی ، دقبیلی دسنتی تولنی یوعام رواج دی اودغسی خپلوی دراتلونکو غچونو او واقعاتومخه هم ډیره ښه نیولی شی . د(پښتانه د تاریخ په رڼا کی ) کتاب مرحوم لیکوال ظفر کاکا خیل دخپلوی د اصل په باب د شیرانو او کاکړانو په برخه کی مثال ورکړی ، چی قول یی پورته را نقل شو . خودغه خپلوی اصل یو څه زیاته څیړنه غواړی چی په اتنولوجیکی چوکات کی یی نور مواد دنورو ولسونو دقبایلو سره و څیړل شی . ځکه پر دغه برخه ډیر کار نه دی شوی او ددی ایجاب کوی ،چی زموږ داخلی پوهان یی له نظره ونه غورځوی . ترکومه ځایه چی زمامطالعه او معلومات اجازه راکوی ، د نړی د نورو ولسونو په قبیلوی څیړنو کی هم دغه کار ته اهمیت ورکول کیږی .

**۳) ګوند ی :**

د قبیلو ی تشکیلاتو دریم اصل ګوندی ده ، چی د ( پښتانه دتاریخ په رڼا کی ) لیکوال راوړی ده. ګوندد قبیلوی تشکیلاتو یو خاص سیستم دی چی په هغه کی خیلونه بیله دی چی د خیل یا ټبر نسبی اړیکی په نظر کی ونیسی ، داخلیږی . د دوی دغه اتحادیی ته ګوند وایی . خو څرنګه چی د ګوندی کلمی د پری جنبی حیثیت پیدا کړی دی ، نوپه عام ډول داکلمه ترنیك په بد مفهوم کی استعمالیږی چی د پورتنی اثر لیکوال هم دغه د پری او جنبی جمله ورته استعمال کړیده .

دا چی ګوند څرنګه موسسه ده یا دغه موسسه څه وخت منځ ته

راغله په پښتني قبيلو کې ډېر پـه زړه پورې مواد پيدا کيدای شي .

تر کومه ځايه چې ما دافغانستان‌په قبيلوي سيموکې ريسرچ کړيدی نو دپکتيا، وزيرستان او داسې واخله تر سوات پورې په ټولو قبيلو کـې گوندونه شته . تور او سپين گوند، گاړې او سمل (٤٨) دوه غټ گوندونه وه ، چې اوس يې وروستي بقايا ليدل کيږي .

گوند يوه لرغوني قبيلوي موسسه ده ، چې د ټبر په تشکل کې منځ ته راځي او يو داسې اتحاد دی چـې تر نسبي يې سياسي ماهيت زياتوب‌کوي موږ په ترمخنيو بحثونو کې د کام دتشکل په خصوصياتو کـې دا مسئله نتيجې ته ورسوله ، چې کام دکانفدريسي سـره برابره موسسه ده او پـه کانفدريسي حالت کـې د دولت‌موسسه په پيکه ډول منځ ته راځي ددولت موسسه يوه سياسي موسسه ده او دغه موسسه يا سازمان يو دم منځ ته نه راځي ، بلکې په ترمخنی‌حالت کې به يې مقدمات برابر شوي وي . څرنگه چې گوند ی يا گوند هم‌سياسی‌خصلت لري ، نو کيدای شي چـې د پورتني څيړنې نتيجـه پر دی‌حکم تمامه کړو چې گوند په قبيلـه کـې د دولت د موسسې ډېر لرغوني‌او اولني شکل دی .

ټبر چې د خيلونو مجموعه ده ،نوپه نسب سره شريك خيلونه پکې يو ځای کيږي . کله چې دغه سازمان‌يو څه مخ په وړاندې حرکت وکـړي او د کام يا کانفدريسي موسسه منځ‌ته راولي، نوهلته دټبرونو دخيلونو تر منځ يواځـې نسبي روابط کفـايت‌نـه کوي ، ځکه په دغه پړاخـه او متحرکه مرحله کې د نسب او پلرينې‌خپلوی د قضاياو د حل او رهبری له پاره کمواکه کيږي نو مجبور دی چې‌يو بل سازمان ايجاد کړي . دغه نوی سازمان نو د پلرنيې له چوکاټه وزي‌او د گوند په شکل تبارز راکوي چـې سياسي ماهيت لري او دغـه مخ پـه وړانـدې گام نو د دولت د سازمـان په ايجاد کې اغيزې پريباسي .

د دغسې موسسې پـه ډول کـه د نړۍ د نورو ولسونو پـه قبيلوی روابطو کې څيړنه کوو ، نو ديونا ن‌لرغوني قبايل دغسې يو پيکـه مثا ل

راکولای شی . ځکه په یونان کې ددولت د سازمان ایجاد دغسې مثالونه لري. موږ دفیلي ( Phyle ) یوه کلمه پیدا کولای شو چې قاموسونو د ( یوناني قبیلي ) او دلرغونو یونا نیانو د قبیلوي واحدونو یوه داسې څانګه بللي ده چې سیاسي خصلت به یې درلود . (٤٩) دا د خیل وظیفه وه ، چې د یوناني قبایلو لـه خوا به د سیاسـي مصلحتونو لپـاره د روم قبایلو ته لیږل کیده . (٥٠)

په پښتني قبیلو کې د خیلونوله دغه سازمان څخه موږ داسې دځیرني دود مواد په لاس راوړای شو چې په قبیله کې د دولت د سازمان د ایجاد له پاره قناعت بخښونکې دلایل برابر کړي .

د ګوند د ایجاد او دوام په برخه کې چې کوم چا په نو نسمه پیړۍ کې څیړنه پیل کړه ، هغه ( الفو نستون٥١ ) و چې پـه خپل کتاب کې یې پر دغه موضوع څه لیکنـه کړیده . خو نوموړي یوه غټه تیر وتنه کړیده ، هغه دا ده چې دي وایي : ګوند هغه وخت منځ تـه راځي ، چې د خیلونو ترمنځ تازه اختلافات را اوچت شي (٥٢) . د دي خبـري نتیجه نو دا ده چـې ګواکې ګوند یوه موقت موسسه ده . په داسې حال کې چې ګوند یوه دوام لرونکې موسسـه ده او هغـه ګوندونه چې پـه پښتني قبیلو کـې تشکیل شوي وه موږ نه دسپین ږیرو په یاد کې او نه په فولکلور کې چې ددغسې مواردو دتحقیق له پاره ډیر لوی منابع دي څه ولرو چې داخیلونه څه مهال په ګوندي اتحادیه کې سره یو ځای شول .

بنایي الفونستون بـه د ګوند او تړون (٥٣) تر منځ په توپیرنه وي پوه شوی او پر تړون به یې دګوند ګمان کړی وي . ځکه په تړون کـې خیلونه د یوی پیښې پر وخت سـره ځای کیږي او کله چـې هغه تاکلي پیښه پای تـه ورسیږي ، نو د دوی مکلفیتونه هم پای ته رسیږي .

تور ګوند او سپیـن ګونـد دوه رقیبان ګوندونه وو . دا چې ولې یو تور او بل سپین بلل شویدي ، ځانته فولکلوریك روایات لري . خو په دې برخه کې که لرغونو متونو ته مراجعه وکړو، نوهلته شاهنامه چې دآریایي

دوری د فولکلوریك روایاتو څخه مالا مال ده موږ ته د تور او سپین په باب معلومات راکولای شی . دا چې د زردشتی دین موسس (زردشت ٥٤) سپین تمان بلل شوی یاد ده دمذهب پیروان سپین بلل شویدی او د دوی په مقابل کی د ضحاك (٥٥) ډله تور بلل شویدی. نو دا داسی مجرد کلمات نه دی بلکی مفاهیم یی د ډیری څیړنی وړ بلل کیږی .

آیا په هغه لرغونی آریایی قبیلوی تولنه کی چی د سپین او تور ترمنځ کوم ویش و ، نو پښتنی قبایل چې د آریایانو لړی ده د دغه قبیلوی سیستم په نامه کی به هغه اولنی نومونو اغیزی نه وی کړی ؟

زما په نظر د بحث دا برخه هم د یوی مفصلی څیړنی وړ ده ، چی دلته یی زه بل وخت ته پریږدم .

٤) گډېدل ( الحاق یا ادغام ) :

هغه مهم اصل چی دنړی په تولو قبایلو کی مشترك مفهوم لری :

اوس ددی بحث هغه څلورم اصل ته راځو ، چې څرنگه خیلونه یو د بله سره گډېږی . دغه رسم ته الحاق یاادغام وایی اوداسی معلومیږی چی د خیل له تشکل سره به منځ ته راغلی وی . په پښتنی خیلونو کی دا عرف ډیر مثالونه لری « ...لکه خویشکی ، مهمنزی او اتمانخیل چی د یوسفزو سره تل شول یا د گډون قبایلو سالار او منصور ځانگی چی دغور غښتو څخه بیلی شوی‌اودیوسفزو سره ملحقی شوی . (٥٦)»

په همدی ترتیب په شینوارو کی د « (سه پای ) په متعددو پښو کی د (بابر خیلو، حیدر خیلو ،همزاخیلو او حسن خیلو )سره د ( سلیمانخیلو مدغم کیدل (٥٧) » یوڅرگند مثال دی.

مورگان چی د امریکایی سرو پوستانو په قبیلو کی تحقیقات کړیدی نو هلته دغه د الحاق او ادغام درسم په باب وایی « خیل کولای شوای چی پر دی خیل په ځان گډه کړی او له دی لاری یی په نوره‌قبیله هم ومنی. په خیل کی گډېدل د خیل د غړو او افرادو په غوښتنه تر سره کیده، د دغه دود له پاره مراسم هم پرځای کیدل . داسی هم کیده چی کله به

د یوه خیل غړی لږ شوه نو د بل خیل غړی بـه یی د ځان سره انځیستل .
دغه د ګډیدو مراسم دایروکوایسانو تر منځ د قبیلی په جرګه کی کیدل
او عملاً یی د مذهبـی مراسمـو شکل غوره کړی و (۵۸) »

په عربانو کی هم دا دود موجود و« عـربانو دغـه دود تـه (اولا) یـا
(حلف ) وایه او دا هغه دودو ، چـی کله به یو خیل په بل خیل کی مدغم
شو، نو دمدغم شوی خېل غړوبه عیناًهغه حقوق درلودل، لکه داصلی خېل
غړی چی یی خاوندان وو (۵۹) »

فردریك انګلز چی دلرغونی یونان‌او روم د قبیلوی موسساتو سازمانی
خصوصیات څېړلی دی ، نو پـه دغو دواړو تولنو کی دا رسم تائید وی .
دیونانی تولنی دقبیلوی خصوصیتو نو په باب د مؤرخ ګروتی پر بیان دا
ور زیاتوی ، چـی : «خیل حق درلودچی یو څوك په ځان ګډ کړی. دا رسم
داسی پر ځای کیدی چی دغسی‌تاکلی‌خلك به یو ځل په کورنی کی ومنـل
شوه بیا به د خیل غړی شوه . داسی‌کار لږ پیښیدی ، خو کله چـی بـه
واقـع شو ، نو ترتیبا ت یی دعامـورسمیا تو پـه سلسله کـی سرتـه
رسیـد ل ۶۰ »

د لرغونی رومی تولنی په قبیلوکی دغه د ګډیدو یا الحاق رسم تـه
داسی اشاره کوی :
«داد خیل حق‌وچی پر دیـان‌پـه‌ځان کی ومنی دا کار ( لکه د سرو-
هندیانو تر منځ ) داسی کیدی ، چی‌یو ځل به په کورنی کی ومنل شو ،
بیا به پـه ترتیب سـره د خیل غړی‌شو ۶۱»
دغـه ګډیدو یا الحاق رسم پـه پخوانی کافرستان ( اوسنی نورستان)
کی هم و . هلته دا رسم د یونان اوروم د قبایلو په شان پر ځای‌کید ی
لومړی به یوی‌کورنی دغسی غړی یادیوه خېل غړی دبل خېل په کورنیوکی
ومنل شوه او ښځو به د زامنو خطا ب‌ورته وکړ بیا به دخیل د اصلی غړو
په شان د حقوقو او وجایبو خاوندا ن‌شول . د دغـه رسم په‌اجرا کـی دا
ضروری وه چی د الحاق غوښتونکـی‌خیل هـر غړی د هغـه خیل د غړو د

کور په وره کی یو یو وزګړی حلال کړی چی دوی په خپل خیل کی قبلول.

**هغه خیلونه چی د ښځو په نامه دی :**

پښتنی خیلونه د یو کل په ډول د نارینه ؤ په نومونو یادیږی ، لکه احمدزی ، سلیمانخیل ، بارك زی اوداسی نور خو داسی خیلونه هم شته ، چی هغه د ښځو په نامه مسمی دی ، لکه متوزی ،زخه‌خیل، رانی زی او نور .

دا چی دا خیلونه د ښځو په نامه یادشویدی ، ددی حقیقت څرګندوی‌دی چی د یوه ډیر لرغونی عرف آثاریی‌ژوندی ساتلی دی . پخوانی خیلونه ټول د ښځو په نامه وه چی دا نوهغه زمانه وه چی پلار لا معلوم ځای نه‌و میندلی اومور معلومه وه کله چی‌پلار معلوم ځای ونیوی ، نو بیا د خیلونو نومونو د نارینه له نومو نوسره وتړل شول .

دلته هغو خیلونو فولکلور را وړو ، چی د ښځو په نومونو یادیږی او دفرصت په صورت‌کی به په‌راتلو. نکی وخت کی د دغی موضوع اتنولوجیکی څیړنه په تفصیل سره‌وړاندی کړو .

غلجی اقوام د یو کل په ډول ( متوزی ) هم بلل کیږی او دا نوم د مغی ( متو ) څخه اخیستل شویدی‌چی د ( بیټ یا بیټنی ) نیکه لور وه او د غور شهزاده ته واده شوی وه‌او د مغی اولاده د متو زو په نامه یاد شوه .

په اپریدوکی ( زخه خیل ) یولوی شاخ دی ، چی د ( زخی ) انا یا نیا په نامه یادیږی . « دا ښځه داپریدی ( عثمان ) دلمسی (ماپی ) د زوی (اولا ) ماندینه وه .هغه خیل‌چی دی یعنی زخی ته منسوب دی دا لاندی دری شاخه ډیر مشهور دی(بوړی،شانخیل، نورالدین خیل)٦٢ » همدا رنګه په پیښور کی د ککیانوخیل‌دی چی د خپلی نیا (ککی) په نامه مسمی دی

« ککی دکند نیکه ) د زوی ښیخی‌لمسی وه ، چی قبیله یی په نامه یاده شویده (٦٣) .

د یوسف زو په لړ ی کی اتما ن خیل چی ا تمان نیکه ته منسوب خیل دی . د اتما ند مور نوم ( رانی ) وه چی خیل یی د دی دنامه په ارتباط رانی زی وبلل‌شوه (٦٤) ».

دخښې یاښیخې په لړکې دیوسفزویو شاخ « د عایشه زی په نامه یادېږي د ممو ښځه او د الیاس نږورعایشه نومیده نو داخیل د هغې په نامه شویدی چې غټ شاخونه یې خدین خیل او خاکی زی دی ٦٥ »
« په متو زی غلجیو کې د سهاك په لړی کې یوسف خیلو ( توتیاخیل) شاخ هم د ښځې په نامه دی او تراوسه هم د دغه خیل خلك ځانونه دغی(توتیا) نیاته منسوب بولی ٦٦ »په عام ډول په پښتنو کی ښځه دپلار واکی د نظام په منګولو کی لوړ ځای نه لری ، خو کله چې قبیله ور منسوب وی نو د هغه مربوط خیل خلك د خپلی نیا په باب ډیری افسانی وایی او د هغې د میړانی په باب ډیری خبری کوی او حتی په ځینو ځایونو کی یې زیارتونه په ډیره درناوی ساتل کیږی .

## ټبرونه او مهاجرتونه :

مهاجرتونه ( لیږدیدنی ) په قبایلو کې هغه وخت منځ ته راځی چې ټبریز حالت تشکیل موندلی وی. ځکه په ټبریز حالت کی تولیدی قوتونه پرمخ تللی وی ، نو ځکه په روابطو کی یې دا خبره مهمه ده چې د تولیدی پر اختیا له پاره نوی تلاښونه پیل کیږی او ددغوتلاښونو په ایجاب کې یو هم لیږ د (مهاجرت )دی .

آریایی اقوام چې مورږ پیژنو ، نودوی هغه وخت چې تاریخ ته راننوزی دوی مهاجر اقوام دی چې له یوه ځایه بل ځای ته په حرکت کی دی . د (آریانا ویجی ٦٧ ) څخه د اکسوس ( آمو ) غاړو ته اوله ( بلخ ) څخه د ( پکت ، پارسوا او بهارت ٦٨ )د لویو ټبرونو لیږدیدل د هغه وخت سره برابر دی چې دغه قبایل دټبرومرحلی ته داخل شوی وو .

هغه زاړه متون چې د پښتوقبایلو د جینو لوجیکی منشا په باب رغیږی، نو د دغو قبایلو داسلافو ځای دکیسی ( سلیمان) د غرونو لړی بولی .دغه متون چې دنورو اقوامو دجینولوجیکی منشأ د بیان په شان د افسانی په ډول څه مطالب وړاندی کوی ، داسی ښیی چې د (قیس یا کیس ٦٩ ) ددرو زامنو څخه د سړ بن او لادی په لیږ دیدنه پیل وکړ چې په دغه

لړکی (خربښون) غوړی مرغی ته راغی او د ده داحفاد وڅخه د (کنداو زمند) او لاده دکندهار او کابل په واد یوکی سره تیت شول او له دغی جملی څخه د (خښی) او لاده دپیښور تر وادی پوری ورسیده .

یو شمیر څیړونکی پوهان د یوشمیر متونو په حواله دغه لیږدیدنو ته وخت ټاکی او په دی جمله کی شوروی پوه ریسنر وایی ، چی :

« قدیمو افغانانو د سلیما ن د غرونو په تنګیو کی ژوند کاوه او د هغه ځایه څخه د یو لسمی او اتلسمی پیړی تر منځ له دغی سیمی څخه و شمال لویدیځ او جنوب ختیځو سیمو ته خپاره شول ۷۰ »

په دغو لیږدیدنو کی زیاتره د( یوسفزیو ) دتبر په باب داخبر ی کیږی چی هغوی په پنځلسمه پیړ ی کی تر ( سوات ) پوری ورسیدل او په دی باب ( تواریخ ) حافظ رحمت خانی (۷۱) ته زیاتی حوالی ورکو ل کیږ ی چی دغه اثر د یو بل لرغونی اثر ( تواریخ افاغنه یا تواریخ خان کجو ) په حواله لیکل شویدی . خو د دا ټولو متونو او څیړنو سره دا خبره د غور وړ ده ،چی آیا د دغو تبرونو دا لیږدید نی باید اولنی لیږدید نی وبولواوکه یی دیو پخوانی حرکت په لړکی مکرری لیږدیدنی وبولو . ځکه که یوالځی د دغو قبایلو اسلاف دسلیمان په غرو کی فرض کړو او بیا د دو ی داخلافو څخه د (خښی) په قبایلو کی (یوسفزی ) د پیښور تر وادیو پوری راورسوو ، نو دا قانع کونکی خبره نه ده ، ځکه یوسفز ی یا جمعاً دخښی لوی تبر چی د پیښور وادی ته راځی نو هلته یو بل لوی تبر پروت دی چی (دلازاك ۷۲ ) نومیږی او پښتانه دی. اوس نو دا پوښتنه بی ځوابه ده چی دا د ( دلازاك ) تبرونه کومی خوا او څه وخت دلته راغلی دی. د بلی خوا په هغو اسنادوکی چی دیونانی سکندر د تهاجماتو له جریان سره اړه لری او په آریانا کی د هغه له فتوحاتو څخه بڼغیږی نووایی چی « د ۳۲۶ ق م ژمی و چی سکندر مقدونی فاتح دکونړ په سیمو کی د ( اسپیزی ) یعنی یوسفزیو سره وجنګید او له دغه ځایه پر باجوړ او چکدره ورتیر شو . سوات یی تر مساګی پور ی ونیوی ۷۳ »

موږ د دی بحث په تیرو برخوکی‌ولیدل ، چی د منځنی آسیا او پـه خاصه توګـه د هندوکش لمنی او دسلیمـان دری د مالـداری لـه پاره ډیری مساعدی وی نو ځکه دبربریت‌په مرحله کی دلته ډیر ښخوا داسـی انکشـاف راغی چـی د اقتصاد ی اواجتماعی فورماسیون د لومړی مرحلی پـه تکامل کـی ډیر مخ پـه وړاندی‌ګامونه واخلی .

دغه کوچی اقوام او قبایل چی دهندوکش او سلیمان دغرونو په لړ- یو کـی د مالونو ( حیواناتو ) د ښی‌روزنی له پاره ګرزیدل نو لیږدیدنه ( مهاجرت ) یی عادی کار و . دا چـی‌موږ ته ځینی متون د دغو لیږد یدنو په باب څـه وایی ، نو دا د ورستیو لیـږدیدنو حکایات دی کنـه داسـی لیږدیدنی بـه د زرګونو او سلګونو کالو په دوران کـی خورا ډیری منځ ته راغلی وی .

دغـه اقوام او قبایل موږ هغـه وخت د دی ځای په متونو کـی پیژنو چی په دوی کی کرنه پوره باب شوی‌وه او لږ سواد هـم ورته راغلی و . د کوچیتوب د وخت په باب یی څـه نه لرو، بیله دی چـی دهغو فاتحینو په بیانونو کی یی وپیژنو چـی پردی‌سیمـه راتیر شویدی او یو له هغو څخه مقدونی یا یونانی سکندر دی چی‌په کونړ کـی یی داسپیزو له قبایلو سره جنګ کړی و .

اوس نو ویلای شو چی دغو اقواموdلومړی‌کمون اوږده دوره دهندوکش او سلیمان د غرونو په لړیو کی تیره کړه او په ټولنیزه ساحه کی دوی د خیل یا ( Gens ) د نظام خاوندان‌وو. خو کله چی یی پـه‌لیږیدنوبیل وکړ،نو دوی د غرونو دورشو ګانوڅخـه د سیند نـو ، حوزوتـه راغلل او دلتـه یی پـه کرنـه پیل کـړیدی .

دخیل له مرحلی څخه دتبر مرحلی‌تـه د راپورته کیـدو سـره د دوی ټولنیـز روابط د وینی لـه خپلو ی‌څخه د اقتصادی روابطو تابع کیـدل او دا طبعاً د قبیلـو ی جګـړو باعث‌ګرزیدل . لکه په تاریخ کی چی دغه قبیلوی جګړی د نړی په نورو قبایلو کی هم ډیری پـه وینو لړلی توصیف شویدی .

دغه وروستي ليږديدني چې ښځي قبايلو تـه منسوب دي ، د پورتني قول ډېر ښه مثال کيداى شي . يوسفزي اوغوريا خيل دواړه ښځي وو، خو دسيالي اورقابت صحنه يې داسې پـه وينو لړلي وه چې تاريخونـه يې د ډراماتيکو صحنو خورا ډېر بيانونه لري .

د يوسفزو د مهـاجرت پـه بـاب تواريـخ حافظ رحمت خانـي ، تاريخ مرصع، تذکرة الابرار، حيات افغاني،مخزن او نور پوره تفصيل لري او په لنډډول دابيان ډېر پکې کيږي چې د تيموري کورني شهزاده ( ۱۴۰۹ ـ ۱۴۴۹ م ) د دغو قبيلـو مشـرا ن« مداد ، مدو ، عثمان او سلطان شاه» ووژل او يوالحې ملك احمد د سلطان‌شاه يوسفزي وراره له دغه ناورينه وتښتيد او د يوسف زو سره يو ځاى د ختيځ په لوري وليږديد او دپيښور سيمـه يې تر سواتـه ونيوله ۷۴ » د سوات په سيمه کې ملك احمـد مشهور مقنن شيخ ملي په وسيلـه د( ويش دود ) سيستـم قايم کړ چـې زموږ د دې مفصل بحث دوهمه برخه ده چې په راتلونکې برخه کې به په تفصيل پر وړغيږو. اوس نو دپورتني بحث په نتيجه کې بايد ووايو چـې يـو خو د ا لو مړي مهاجـرت نـه‌دى ، بل د يوناني سکنـدر د وخت ، د واقعه نګارانو په حواله يوسفز ي د دغو سيمو لرغوني اوسيدونکي دي چې په کوچيتوب او کـرنه يې ژوندتيراوه . د خوشحـال خان ختك زوى صدر خان ختك د آدم خان او درخاني په داستان کې د دغې قبيلې يادونه داسې کوي :

« يوسفزي پـه مغه دور ، د کوچـي عالم په طور

پـه‌هرځاى کې يې ميشته‌وه، گـاه‌په سيند گاه په ميره وه.

گاه به لاړه د غره خوا ته ، گاه به بيا راغله دريا ته

حادثات په حادثات شول، لاړل ميشت‌په سمه سوات شول ۷۵ »

د بلې خوا د شيخ ملي د ويش اودفتر پـه باب هـم دا خبره د غور او تأمل وړ ده چې کله تازه يوه قبيله پر يوه ځاى پلې شوې وي ، نو هلته د دغسـې يو پراخ او اساسـي نظا م‌قايمول هغه هم په يوه قبيلوى مـا ـ حول کې مشکل کار دى . په دې کـې‌شك نشته چې د دغسې نظام قايمول

هغه وخت ممکن کیږي چې په کلتورکې پخوانی تیاری ورته موجوده وي .

## ویش

## په قبیلو ی اقتصاد ی فورماسیون‌کی یو ډیر لرغونی دود :

ویش په هغه خاصه توګه چې‌په عمومي اقتصادي ساحه کې د یو سیستم په حیث یې یادونه وشي اوداسیستم هم‌په تاریخي لحاظ دقبیلوی تولنی سره اړه ولري ، نو مو بړته دڅیړنی له پاره هغه ساحې راوړاندې کیږي چې هلته ډیرابتدایی اولومړنی‌روابط پالل کیدل .

موږ وړاندې د ( خیل ) پـه بحث‌کـې وویل چې په هغه مهال کې چې تولنه د قبیلوی جوړښت په لحاظ‌دخیل په مرحله کې واقع وه، نوهلته د تولید وسایل مشترك وو او هر څه چې په لاس راتلل هغه د تولو وو . خو کله چې تر خیل پورته یعنی ټبرتشکل وموند ، نو د تولید وسایل هم له پخوانی حالت څخه زیات او پر مخ ولاړل . د ټبر په مرحله کې مهاجر ـ تونه منځ ته راغلل او د تولید نو ی‌لاری چاری په مخ واخیستل شوی .

په دغه مرحله کې مځکه د تولیدد یوی وسیلی په توګه تر کارلاندی ونیول شوه . په لومړنی سر کې پـرمځکه کرنه داسې پیل شوه ، چې د روزل شوی حیواناتو دخوراك له پاره‌کرنه پرکیدله خووروسته دانسانانو د عمده خوراکـي موادو د تولید یوه‌منبع شوه .

د تولیدی وسایلو محدودیت دوی‌زیات کار ته اړ کړی وو او دغه کارـ ونه باید په ګډه سرته رسیدلی وای‌او د دغه ګډ کار محصول هم باید په ګډه تر ګټې لاندی راغلی وای.پـه‌دغـه دوره کـې د فرد څخه د فـرد استثمـار نـه و ، او دا نو د هغـــه سیستـم خصلت وی چې د لومړ ی اشتراکیت په نامه یادیږی .

د ګډی مالداری او ګډی کرنی کاروړو ورو پر مخ تی « د کار دتولیـد تبادله په لومړی سرکې د خیلونو ترمنځ په پراختیا پیل وکـړ ، بیا یې د کمون په منځ‌کی نفوذوکړ او وروسته په تدریجی ډول په کمون کې‌دګډ کار ضرورت په ورکیدو پیل وکړ . قبیله او خیل پر کورنیو وویشل شوه چې وروسته هغه هره یوه د یو مستقل‌اقتصادی یونټ پـه حیث راپورتـه

شوي او دکار ځای استثمار ونیوی اود خصوصي مالکیت څیره را څرګنده شوه ۷٦ »

د لومړی اشتراکیت په دوران کی‌د تولید وسایل توله ګډ او مشترك وه اودکار محصول یاتولید په عادلانه ډول ویشل‌کیدی خو په هغه پسی یو داسی وخت را رسیږی چی دتولیدوسایل هم ویشل کیږی خو دا ویش هم غیر ی عادلانه نه ؤ ولی داضافی‌تولید په متروکی چی د خصوصی مالکیت لـه پاره تلابنی روان و نو داویش هم وروسته د استثمار له پاره زمینه برابره کړه .

مځکه چی دکرنی له پاره په کارولویده د تولید یوه وسیله وه . په لومړی سرکی د ټولو ترمنځ داوسیله مشترکه وه ، خو کله چی د خیل تولنی وتبریز تشکل ته ګام راپورته کړ او د وینی اړیکی داقتصادی اړیکو تابع شول ، نو د پورتنی نقل قول پراساس کورنی د مستقل اقتصاد ی یونټ په توګه دا ضرورت محسوس کړ چی د زیات فعالیت له پاره دتولید پر وسیله مالکیت ولری .

دغه مالکیت په تدریجی ډول منځ ته راغی چی ډیر ښه مثال یی دویش دود په سیستم کی پیدا کولای شو .هغه مځکه چی پخوا د ټولو تر منځ یو ګډ ملکیت و ، ویش په کښیوت‌خو د ا و یش پـه تبـر کـی د خیلونو ترمنځ و او په دورانی‌شکل‌به سرته رسیدی . مځکه به دټاکلی وخت له پاره دخیلونو ترمنځ وویشل‌شوه او پسله دغه وخته بـه بیـا مځکـه په ګډ ملکیت کی راغلـه ،څو په سر دوباره بیا ویش په ګډ شو .

دا ویش د قبیلـوی اقتصـاد ی‌فورماسیون یو ډیر لرغونی دود و چی پـه ټولو قبیلـوی ټولنو کـی پالل‌شویدی .

په پښتنی قبیلوکی ددی اقتصادی‌سیستم بقایا تر دا ډیرو نژدی وختو- نوپوری موجود ووچی مثا لـو نه‌دداخلی او د باند نی پوهانو لـه پاره د څیړنی پـه زړه پوری موضوع وه‌او د یوی پیړی څخـه زیاته زمانـه کیږی چی په پښتنو کی د ویش پـر سیستم څیړنه پیل شویده او لا دوام لـری .

په دی روانه څیړنه کی پر دغه سیستم یوه څو اړخیزه اتنولوجیکی څیړنـه وړاند ی کیږی . البتـه داپوښتنـی پـه زړه پوری دی چـی : د پښتنـی قبیلو د ویش دود څنګه صیات څه ډول دی ؟ یا دا چی دویش دا سیستم په مشخصه توګه په کومه مرحله اړه لری ؟ دا او داسی نور ی پوښتنی جواب غواړی او دا ضرور ی بریښی چی د پښتنی ټولنی دا لرغونی دود د هغو نورو یو شمیر قبیلو لـه دغسی دود سره وڅیړل شی چی پـه دی برخه کی یی مواد راغونډشویدی.د نړی په مشهورو ټولنو کی چـی د قبیلوی مرحلی په دود ونو کی یی دویش دود درلودلی دی،دجرمانیك او ایرلنډی قبایلو دغه دود د پښتنو دقبایلو لـه ویش دود سره په ښـه توګه مقایسه کیدای شی .

**ویش یا د ګډ او خصوصی مالکیت یو خاص ترکیب .**

د ویش سیستم چـی په پښتنـی قبایلو کی پالل کیـدی او یا دنړی د نورو ځایونو پـه قبیلـو کـی رواج درلود، د خپل جوړښت په لحاظ یو خاص ترکیب دی او موږ کـولای شوچی دګډ او خصوصی مالکیت داشتراك یوه نمونه یی وګنو . د مثال په ډول یو توکـر د کرنی ځمکه یوی کورنی ته د یوه ټاکلی وخت له پاره ورکول کیږی او کله چی دا وخت پوره شی ، نو دا ځمکه بیرته ځینی اخیستل کیږی او په یوه دورانی ویش کی بله ځمکه ورکول کیږی. په دی ډول نو دامځکه د یوی مودی لـه پاره د کورنی پـه خصوصی ملکیت کی وی او تر دغـی مودی وروسته د عمومی یا ګډ ملکیت په تصرف کی راځی .

دا چی دغه دود د تاریخـی تکامل د کومی مرحلـی محصول دی له دوه اړخه باید وڅیړل شی . څرنګه چـی ځمکه د ټولی قبیلی ګـډ ملکیت دی دایی د لومړی اشتـراکیت خصوصیت دی ، ځمکـه د یوی تولیـدی وسیلی په توګه د ټولنی په تصرف کی ده او دا چـی په یوه ټاکلـی دوره کـی د یوی کورنی یا فرد پـه تصرف کی راځی نو دادخصوصی مالکیت خصوصیت یی دلو مړی اشتراکیت پسی مرحله پوری باید وتړل شی . خو څرنګه چی د ګډ مالکیت خصلت ورسره ملګر ی دی ، نو د لومړی اشتـراکیت پسـی مرحله یی قبلولای نسی .

په دی توګه نو ددغو دوو مرحلو په منځنی فاصله کی یی واقع بایـد وبـولـو یایی دلومړی اشتراکیت دوروستنی مرحلی د بقـایا وو څخـه وشمیرو .

د پښتنی قبیلو په مورد کی چی‌دا مسئله څیړو، نو وینو چی دلته د لومړی اشتراکیت یوه اوږده زمانـه تیره شویده خو دمړئیتوب مرحله یی ډیره پیکـه ده او دختیـځ د ځانتـه خصوصیا تو له کبله یی دتولید طرز د هغه عمومی فورمول تابع دی چی په دی مورد کی د ختیځ په باب طرح شویدی او وایی چی دکرنی له پاره نـه مساعدت او طبیعی شرایط د دی خنډ شویدی چی دلته د تاریخی تکامل‌دوهم او دریم پړاو پـه هغه شکل او ماهیت منځ‌ته راشی ،لکه په‌لویدیځ‌کی چی منځ‌ته راغلی دی.

له دی‌کبله نو د ویش داسیستم‌دلته د ختیځ طـرز تولید د عمومی عملیی یوه برخـه ده چی زیاتره یی‌د لومړی اشتراکیت خصوصیتو نـه ژوندی ساتلی دی .

څرنګه چی دغه دمځکی له ویش‌سره کورونه هم په دورانی ویش‌کی راځی ، نو موږ ته دا ډاډ حاصلیږ ی‌چی دا یو ډیر لرغونی دود دی . په دی برخه کی داسی وایی : « ...داچی‌کورونه یی هم د جمعی استوګنی لـه پاره په کار اچول او پر مغز یی هـم‌ددورانی تبدیلی ملکیت‌قایماوه،نودا د خصوصی مالکیت یو ځای کول دی دګـډ مـا لکیت سره . هـغـه تولنی چی په خپله منشاکی ددغسی‌علایمو درلودنکی وی، نو‌دوی‌دډیری لرغونی تولنی څخه د په مځکه تړلی‌تولنی لرته په عبوری موقف کـی وی . موږ کولای شو پـه اسیا کـی‌دغسی زراعتی ټولنی په افغا نانـو اونوروکی ووینو دغسی ټولنی هـرچیری د هغه طرز نمایندګی کوی چی په خلاصه د کلام یی باید ( لرغونی‌تولنیز فورماسیـون ) وبولو (۷۷) » د ګډی کرنی او د مځکی د ویش دوددډیرلرغونی دی چی دخصوصی مالکیت څخه په وړاندی عصرونه پوری اړه‌لری په اشتراکیه تولنه کی مځکـه د تولید د یوی وسیلی په توګه ګـډملکیت و او د کرنی په ټولنو کی‌هری کورنی پر یوه ټوټه کرنه کوله اوله دغـه ځایه چی تولید زیاتیـدی نو خصوصی مالکیت منځ ته راغی (۷۸ )

د دغه لرغونی دود د تاریخ پـه باب موږ تـه یو لرغونی واقعه نګار چی د یونانی سکندر سـره دی سیمو تـه راغلـی د ی او ( نیارکـوس ـ Nearchus نومیـږی ، داسی وایی : « هغسی ټولنی چی په ګـډه کرنه کوی دهند په شمالی سیمو کی‌لیدل کیږی ۷۹ »

هغه سیمی چی یونانی واقعه نګاریی د هند شما ل بولی په هغوکـی د اباسیند لوړنی حوزه هـم شامل ده‌چی دا دی ددی روانی پیړی تردوهمی

نیمایی پوری یی دګډی کرنیَ د پوورووستی شکل دود پاتی او دانو په عمده توګه د سوات سیمه ده چې یوسفزی پر اوسی او د ویش دودیی ساتلی و . وروستیو تحقیقاتو داوښودله چې دغه د ویش دود نه یوازې په افغانانوکې بلکې په عربانو، ترکانو او هندیانو کې هم ؤ .څودیر څرګند او ژوندی مثالونه چې یې په کومو قبایلو کې ډیر روښانه لیدل کیږی ، هغه پښتانه قبایل دی .

شوروی افغان پوه (م ـ ګ ـ اسلانوف ) وایی : « په تذکرة‌الملوك کی چې دبریتا نیاپه موزیم کې ساتل شویدی وایی چې په یولسمه پیړی کې افغانانو په ځمکنی کرنه پیل وکړ .د ځمکې د دوباره ویش په دوران کې د کورونو تبدیلی نو هغه خصوصیت دی چې پر ځمکه د بدوی او اولنی میشته کیدو عصر ښیی ۸۰ »

د پورتنی څیړنی څخه نو دانتیجه را باسو چې د ګډ ی کرنی څخه د ګذر مرحلی خصوصیت دی چې د ګډ مالکیت څخه د خصوصی مالکیت خواته مخه یی بایدوبولو . په دغه دود کې دوه خصلته څرګند پراته دی . کله چې ځمکه سره راټوله شی او ویش لانه وی پیل شوی دا د ګډ ملکیت خصوصیت یی د لومړی اشتراکیت د مرحلی علامه ده او کله چې وویشل شی نودا یی د خصوصی مالکیت له پاره یوه مخه ده خو څرنګه چې تولنیز اواقتصادی شرایط پوره ورته برابر نه وی نو دورانی شکل غوره کوی یوځل ګډ ملکیت ځینی جوړیږی او بل ځل د خصوصی مالکیت په بڼه اوړی .دا تر هغه مهاله پوری چې د ویش سیستم پای ته ورسیږی او ځمکه په خصوصی مالکیت بدله شی .

د پښتنو په قبایلو کې ویش ترهمدغه پورتنی اصل لاند ی بیلی بیلی مرحلی تیری کړی ، څو دشلمی پیړی په دوهمه نیمایی کی د دی دود وروستی بڅری هم خاموشه شوه .

## په پښتنی قبایلو کې د ویش سیستم

د کرنی د ځمکو ویش دود چې تراوسه پلټل شویدی نو زیاتره برخه یی دسوات په یوسفزی قبیلو پوری اړه لری . نور نو د باجوړ په لویو ماموندو ، وړو ماموندو ،سالار زیو کی د دغه دود په باب یو څه اتنو ګرافیك موادراټول شویدی . د باندنی څیړونکو له الفو نستون چې په بریخو کی هم د ویش دود په باب ږغیدلی ،

او څینو د شیګل په شینوارو کی همدغه دود خپرلی او د مرو تو په قبار یلو کی هم دغه دود موجود و او ما په خپله د هلمند د جنوبی برخی په ګرمسیلونو کی دغه دود لیدلی دی چی ۱۳۴۵ کال په شاوخوا کی دمغی سیمی د مځکی د تصفیی سره دغه دود پای ته ورسیدی .

د ویش په سیستم کی د کرنی مځکه دیوه ټاکلی وخت له پساره د کورنیو او خیلونو ترمنځ ویشل کیدله او کله چی به دغه وخت پوره شو نو دا مځکه به بیا سره ټوله شوه اود پنځی په دود به ویش پروشو او هرچاته به یوه یوه برخه ورسیدله . د ویش څخه پخوا مځکه په بیلو بیلو ټوټو ویشل شوی وی په عامه اصطلاح سره او پایه مځکه سره جلا شوی وی دا ټوټی د کمیت او کیفیت له لحاظه توپیر هم سره لری . د دی له پاره چی برابری راغلی وی ، نو پنځه پر اچوی او هر چا ته چی هر ډول مځکه راووتله ، قناعت به پر کوی .

په څینو ځایونو کی د کرنی له مځکی سره باغچی او کورونه هم په ویش کی راتلی خو د کورونو ویش دبنه ډیر وخت راپدی خوا له رواجه لویدلی دی . د ویش د وخت په باب هم توپیرونه وو . څینو څلور کاله وروسته ،څینو اته ، یا لس یا پنځلس او یا شل کاله وروسته ویش کاوه او په څینو کی داسی وو چی د یوه ویش په وخت کی به سپین ږیرو دبل ویش پریکړه ( فیصله ) کوله .

په عام ډول په پښتنو کی ویش قبیلوی رنګ لری . مځکه پر ټپو خیلونو ویشل شوی وی ، هغه یی بیا را لاندی تر کورنیو پوری ویشی. ولی په څینو ځایونو کی سره له دی چی قبیلوی رنګ لری خو سیمه ایز خصوصیت یی هم پیدا کړی وی اود کلی او سیمی په اعتبار د ویش عملیه پر ځای کیږی .

هغه اصطلاحات چی دکرنی مځکی د ټوټو یا دکلی د اوسیدنځایونو یا د ویش د عملیی له پاره استعمالیدل د پخوا او اوس یا د قبیلو او سیمی د شرایطو یا د ویش د خپل ځانګړی خصوصیاتو له پلوه توپیر سره لری چی دلته د هغو ټولو راوړل دلیکنی د اوږدوالی باعث ګرزی ترممکن حده به دغه اصطلاحات تر بیل عنوان لاندی راوړو.

په عمومی ډول هره ټپه بیا تر کورنی پوری په مځکه کی حق لری

او دغه استحقاق ته یی برخه ویل کیږی . د برخو مجموعه چی ټپی یا
خیل ته منل شوی وی ، هغه دپچی یا هسکی په نامه یادیږی. هره برخه
پر نیمکو ، پاونو ، میریو ، پیسو او کاسیرو ویشل کیږی اوکوچنی معیاری
واحد یی چوکه ده .

د کلی په اعتبار په دغه ویش کی بکری وند، چم، کندی ، کندراو-
کوته وه ، چی معیاری حیثیت یی درلود . سیری له ویش څخه وتلی
وقفی ډول مځکه وه‌چی دعامه خدماتو له پاره به یی حاصلات استعمالیدل.
لکه ( دجمات د تیلو سیری ) یا د(اوجری سیری ) او داسی نور .

هغه همسایگان یا صنعت کاران‌چی د دغو قبیلو سره په اوسید ل
مغو ته هم یوه توټه بیلیدله چی‌سیری نومیده او په ویش کی نه
راتله همدارنګه روحانی کسانو یاخانانو ته به توټه بیله شوه چی
دا یی هم سیری بلله .

په ځینو ویشونو کی چی دقبیلوی‌اعتبار څخه به د باندی وو او دملاتړ
په نامه یادیږی د ( دود یا لوګی )په نامه یی استحقاق تثبیت کیدی .

ویش به د یو روحانی سړی په وسیله کیدی . د برخو علایم به د
روحانی سړی په لمن کی واچول شوه‌او بیا به یو نا بالغه ماشوم دغه
علایم پورته کول . په دغه وخت کی به دقبیلی ټول خلک حاضر وو چی د
هر چا استحقاق به معلوم شو ، دزی به کیدی او دا کار به په خوښیو او
ښادیو سرته رسیدی. ددغه کارد سرته رسیدو په رخت کی به د
منصفه روحانی هیئت له پاره ډیری‌درنی او غوړی میلمستیا وی کیدلی .
د ویش مځکه نه چا خرڅولای‌شوای او نه یی په کروی ورکولای
شوه . البته کیدای شو چی د ویش‌توټی دوه کسه په مصلحت سره
بدلی کړی .

د دغو مځکو سره داسی مځکی هم‌واقع وی ، چی د ( انعام ) په نامه
یادیدی او دا هغه مځکی وی چی دسیمی با نفوذه خانانو ، ملکانو ته
به پادشاهانو په انعام ورکړی وی‌اوهغه کسان چی له دغسی مځکوڅخه
یی ګټه اخیسته (انعام خواره) بلل کیدل .

داسی کسان به هم وو چی برخه به یی ورکه شوی وه . دا نوهغه
کسان وو‌چی یا به له حسابه ولویدل یا به‌حاضر نه وو او خوبالعموم
هغو کسانو ته دا تکلیف ورپیښیدی‌چی دوی به کمزوری وو .

دغسی کسان به دیوه ویش څخه تربل ویش پوری بی ملکی پاته ور
اوپه بل نوی ویش کی به یی عرض او ریدل کیدی .

که به کله د ویش په وخت کی ددوو کسو ترمنځ یو د بل پر ملکه دعوه شوه ، نو د دوی سره به (خسنې ) کیدی او په دی ډول به یی قناعت حا صلیدی .

دویش دود چی پخوا عام و ،ورو ورو ور تو لیدی څو دمغو قبیلو په منځ کی پاته شو چی له هواروا و آبادو سیمو څخه لیری واقع وو. خانانو ، روحانیو نو او دنفوذ خاوندانو پرمځکه دخپل ځانی ملکیت تصرف وکړ او ددی روانی پیړی د لومړی نیمایی په پای یاد دوهمی نیمایی په سر کی دا دود له منځه ولاړ . دویش دود دمنځه تلو عوامل به ترجلاعنوان لاندی وڅیړو .

## دشیخ ملی دفتر

د پنځلسمی پیړی ترورو ستیو وختو نو پوری یو سفزی قبایل دپیښور څخه ترا باسیند او سوات پوری خپاره شول او تریو لړ جګړو وروسته یی یوه لویه او پراخه سیمه په خپل تصرف کی راوستله. دسوات پر آباده مځکه ددوی اقتصادی وضع ډیره ښه شوه خو څرنګه چی تر دوی پخوا هم پردی سیمه ډېر تو قبا یلو په کلتور کی دمځکی ویش دود موجود و ، نو دوی هم دغه کار ته اقدام وکړ . د بلی خوا دخپنی دوه غټ ښاخونه یوسفزی او مندړچی د سواتیانو او دلازاکو قبایلو دډګر فاتحین راوتلی وو، دمځکوپرسر یی دځینو اختلافاتو څخه داسی معلو- میدله چی په لویو لانجو په کښیوزی نو د دغه وخت په مشرانو کی ملک احمد چی لوی عامل او مدبر سړی ویو بل پوه او مدبر شخص چی په شیخ ملی معروف و ، موظف کړ چی د دغو خیلونو او ټپو تر منځ مځکی وویشی .

شیخ ملی په نهایت تدبر دا کار وکړ، هغه ته خیلونه او د خیلخانو حسابونه معلوم وو او دبلی خوایی ددغو داستوګنی سیمی اوددغوسیمود کرنی دطبیعی شرایطو وضع مطالعه کړه اوبیایی نوویش وکړ. دغه ویش په یوه دفتر کی قید شو، چی هغه ته ( د شیخ ملی دفتر ۸۱ ) وایی.
دشیخ ملی داویش ته پوخ ویش وایی« دغه ویش د تپه وار بدلون په حساب و ، کلی او اولسو ته به پګی خو کاله پس د یوی علاقی نه بلی ته کوچیدل ، دی ته به یی (وار) ویلو او دا واره ګری تقسیم تر ډیری زمانی جاری ژ اخر یوسف مندړ خپل ملك دوی برخی کړ او نیمه سیمه د سوات اوبو نیر سره دیوسفزو شوه او نوره علاقه د اباسین تر غاړی تر پیښوړه ترتوربیلی دمندړو په تصرف کی پاته شوه (۸۲).
د شیخ ملی په دفتر کی لومړ ی پلا مځکی پر دغو شپږو تپو ویشل شوی وی :
۱) د یوسفزو تپه ( د شمالی مردان سیمه او سوات ).
۲) دمحمد زو تپه ( اشنغر او چارسده ).
۳) دګګیانو تپه ( دوابه ، باجوړ ،چار منګ ).
٤) د داود زو تپه (ګلپانی، بګیانی).
٥) دخلیلو تپه (دپیښور ترنوښاره)
٦) دمومندو تپه (د پیښور شمال‌غربی پلو ترجنوب غربی پوری )(۸۳)
د شیخ‌ملی په دفتر کی د هر ی تپی برخه معلومه وه او بیا په تپو کی د ننه د ویش ترتیب معلوم و اود یوه سیستم په شکل دا دفتر داسی ترتیب شوی و، چی حتی دتیری‌کونکو له پاره دمجازاتو برخه هم پکی تاکل شوی وه او د عامه خدماتو له پاره‌د کورو سر په نامه تیکسونه او د دغو حدود معلوم وو .

## دری دوله ویش

د مځکی ویش د ګډی کرنی څخه وروسته منځ ته راغلی دی او داسی معلومیږی چی په لومړی سرکی به دومره زیات د نسبی روابطو تابع نه

و . خو وروسته چې قبیلوی اړیکې ټینګ شول ، نو نسبي ویش به منځ ته راغلی وي. د قبیلو ترمنځ سیالۍ او جګړې د دې سبب وګرزیدې چې په دغه ویش کې نور پرنسیپونه هم په نظر کې ونیسي . په عام ډول دا درې ډوله ویش د یادولو وړ دي :

۱) خوله ویش :

دا د قبیلوی پریکړو پر اساس ویش دی چې د کلي او کندي اوسیدونکي په نظر کې نیول کیږي اوقبیلوی اعتبار یې په دوهمه درجه کې وي . په دغه ویش کې هر اقتصادي او اجتماعي واحد ته دهغو سړي سر حساب کیږي او بیا ځمکه ورته تاکل کیږي .

۲) نسبي ویش :

په دې ویش کې خیلونه په نظر کې نیول کیږي او هر خیل او ټپې ته په قبیلوی اعتبار سیمه وربیله کیږي او دا هر خیل او ټپه بیا په خپل منځ کې تر کورنیو پورې د ویش توتې تاکي .

۳) ملاتړ ویش :

په دې ډول ویش کې هغه چا ته ځمکه ورکول کیږي چې هغه ملاتړي، یعنې توره اخلي او دخپلې ځمکې څخه دفاع کوي . دقبیلې ټول هغه ځوان دي اوتوپك اخلي په ځمکه کې برخه لري . د ویش څخه پخوا دوولس کلن زلمي او یا چې تر دې یې عمر پورته وي په شمیر کې راځي او برخه اخلي (٨٤) .

داسې معلومیږي چې لومړي ویشونه خوله ویش وو. دشیخ ملي په ویش کې هم د خولې ویش علایم شته اوهمدا رنګه د اسمارو د شیګل په دره کې د شینوارو ویش چې د شیخ بابا په نامه شهرت لري، هم دخولې ویش و . په عام ډول وروستي ویشونه چې د ماموندو او سالار زو ویشونه یې بنه مثال جوړوي ، نسبي یا دشجري ویشونه وو .

د ملاتړ ویش په مثالونو کې داتمانخیلو ویش د یادونې وړ دی . د اتمانخیلو او سالار زو ترمنځ دسکندري پر سر جګړه وشوه او سکندره اتمانخیلو ونیوله . د دې له پاره چې دا سیمه له سالار زو څخه وساتل شي ، نو دهغې ځمکې یې په ملاتړ وویشلې یعنې هغو کسانو ته

په ویش کی حق ورکول کیږی چی جنګ کولای شی ، یعنی دا ځمکه له سالار زوځخه ساتلای شی .

د کندهار د بنوراوك برېڅ بیا ددود په اصطلاح سره د ملاتړ ویش لری او هره کورنی چی د توپك داستعمال هر څونه ځوانان ولری ، په هغه اندازه ځمکه اخلی .

## د ایرلینډ او جرمنی اقوامو له ویش سره د پښتنو قبایلو د ویش دود مقایسه

دا خبره ودېری زیاتی څیړنی ته ضرورت نه لری چی په کومو قبایلو کی د ځمکی د ویش سیستم و ، اوپه کومو کی نه ؤ . بلکی هر ځای چی دخیل او ټبر نسبی واحد دیو اجتماعی یونټ په شکل موجود شوی دی ، هلته ګډه کرنه او په هغه پسی دویش سیستم سم ورسره ملګری دی .

دپورتنی جملی څخه باید دا مطلب وانه خیستل شی ، چی د خیل یاټبر اجتماعی موسسه دګډی کرنی یاویش د اقتصادی سیستم دمور حیثیت لری ، بلکی ویش د یو اقتصادی یونټ په توګه د زیر بنا حیثیت لری او طبعاً پر دغه زیر بنا ودانه روبنا بدلون مومی .

د نړی په هغو قبایلو کی چی دویش اوګډی کرنی په باب یی څیړنی شویدی ، موږ ته د ایرلینډی اوجرمنی اقوامو په باب علمی اومستند اسناد په لاس کی شته . دغه کار ( ف اینګلز ) په خپل علمی صلاحیت کړیدی چی دلته د هغه د مثالونو په رڼا کی د دغو اقوامو د ویش سره د پښتنی قبیلو دویش دود مقایسه کوو. په عام ډول لکه د تولید نور وسایل چی په سر کی سره ګډ ( مشترك ) وو ، ځمکه هم د تولو ګډ ملکیت و . « هغه ډیر لرغونی (سیلتی یا کیلتی ٨٥ ) قوانین چی زموږ لاس ته رارسید لی دی داڅرګندوی چی په ( ایرلینډ) کی د خیل موسسی ژوند درلود او په ( سکات لینډ ) کی هم دغه روابط موجود وو چی انګریزانو په وسلو ،قوانینو او زور له منځه وایستل .

هغه لرغونی ( ویلشی ٨٦ )قوانین چی د انګریزانو تر تسلط څو پیړی پخوا لیکل شویدی ، داښیی چی تر یولسمی پیړی پوری د ګرده کلی د ګډی کرنی دود لا هم و .... هری کورنی پنځه ایکړه درلوده ، څو د دوی ترمنځ یوه داسی توته هم وه چی په ګډه به یی کرله او حاصل به یی بیا خیل ترمنځ ویشل (٨٧) »داڅو په ایرلینډ کی د ګډی کرنی

دود و . اوس راځو ویش ته چې څه ترتیب یې درلود .

« په اولسمه پیړی کې انګریزی قانون پوهان ایرلینډ ته ولیږل شول، چې هلته هغه ځمکې د انګلینډ د باچا په تصرف کې راولی چې تر دغه وخته د (کلان یا خیل ) په ملکیت کې وې او په دغو ځمکو کې ځینې داسې ټوټې هم وې چې د خیل مشرانو یا سرخیلانو هغه د شخصي ملکیت په ډول تصرف کړې وې .

په دې لړ کې چې به کله د خیل څخه کوم څوک مړشو ، نو به یو کهول ورسره منحل کیدی او دا وخت به سرخیل چې انګریزي قانون پوهانو د (کاپوټ کاګني شینس ) (۸۸) په نامه یاد کړیدی د کهولونو تر منځ ځمکه دوباره ویشله . دا ویش عام ډول دهغو قواعدو سره برابر پرځای کیدی ، لکه په جرمنی کې چې رواج وو ۸۹ »

دا چې ایرلینډی سرخیل یا (کاپوټ کاګني شینس )د هغو ځمکو په اړخ کې چې تر ویش لاندې راځی په خپل ملکیت کې ځمکې لری نو دوی د پښتنی قبیلو د هغو خانانو سره یوشی دی چې په سیری یې ځمکه په لاس راوړی وی او بیا یې له ویش څخه ایستلې وی . داسې د خانی سیری د سالار زو په برم خیلو کې لیدل کیږی او د برم خیلو ملك د ایرلینډ ی (کاپوټ کاګني شینس )سره برابر موقف لری .

د ( روندیل ۹۰ ) په نامه دکښت ګډه ځمکه په ایرلینډ کې د ګډ ملکیت څخه د ویش دود ته د انتقالیو عرف و « .... روندیل د خیل د مشترك ملکیت د کرنی ځمکه وه چې پر لویو لویو ټوټو ویشل شوی وه .

دا ځمکه د موقعیت او جنسیت له نظره پر اوږدو او لنډو برخو برابره او د ( کیوان ۹۱ ) په حساب ټاکل شوی وه ، چې د کیوان یوه برخه رسید له او دنوری شاړی او دځر ځمکی څخه په ګډه استفاده کیدله . نژدی پنځوس کاله پخوا د دغو ځمکو ویش کله ، کله او په ځینی وختونو کی هر کال عملی کیدی . ۹۲ »

- روندیل د پښتنی قبیلو د ( ونډ )سره نژدی مفهوم لری چې په پښتو کی د یوه خپل یا کهول برخه ( بګړی ونډ ) بلل کیدله یعنی د عمومی یا ټوله کښت څخه یوه برخه وه . بله کومه اصطلاح چې له دغه (روندیل) سره مقایسه کیدای شی ، هغه (بانده ) ده ، بانده په اول کی د

کښت خړوبې شوې مځکې تـه ویل کیدل « او دا هغه نوې خړوبې شوې مځکې وې چې د شیخ ملي تر ریفورم وروسته آباد شوې او د شپږ اصلي تپو په اړخ کې نور افغاني قبایل پکې میشته کیدل دایې بانده بلله ۹۳».
همدا رنګـه (ګیوان) یو تاکلـی مقیاس و ، چـی د پچـی سـره یـی مقایسـه کولای شو ، ځکه پچه یوه اندازه ده چې پر برخو ویشل کیږي .
په جرمنی کی د (مارکی سیستم ـ ۹٤ ) په باب ډیر بحثونه کیـږي .
دمیلادی لومړی پیړی په اوایلو کـی هغه جرمنیان چی د کوچیتوب څخـه میشته کیدو ته را اوښتی وو، ددوی تر منځ مځکـی ګډی وی . دوی پـه لومړی سر کی لږ وو او مځکی ډیری وی ، نو دوی به هر کال یوه توټه کرله او پخوانی توټه بـه یی د مځکـی د کمزوری په لحاظ بی کښته پریښو ـ وله . پـه وروسته کی چی نفوس زیات شو ، نو «پخوانی اشتراکی مځکی د بیلو ، بیلو انفرادی کهولونو تـر منـځ د مروج دود پر اساس وویشل شوه . دا ویش پـه لومړی سر کی د ټاکلی وخت لـه پاره و ، بیا دایمـی شو . خو ځنګلونـه او څر ځایونه اود اوبو ډنډونـه د پخوا په شان پـه ګډه ملکیت کی پاته شوه ۹۵ »
د جـرمنیانو (مارك یا مارکی ) د پښتنو پـه ویش دود کـی د خولـی ویش سره برابر دی چـی کلی یـی معیارو او د پښتنو پـه ویش کـی د (کندی ) اصطلاح په دغه مورد کـی ټاکلی مفهوم افاده کوی .

### د ویش د منځه تلو غټ عوامل

دویش دمنځه تلو په غټو عواملو کی د (سیری خورو ) زیاتوب و چـی په دی ډله کی قبیلوی خانان ، ملکان او روحانیون وو چی دسپین ږیرو په توګه به ویش د دوی په حضور کی کیدی او په هر ویش کی به دوی د کرنی د مځکی ښی ټوټی د سیری تـر نامه لاندی ځانته اخیستلی او بیا به دغه سیری له ویش څخه وتلی وی .
دا تلاښ به د هغو خلکو له خوا زیات کیدی چی په ویش کـی ښـه مځکه پـه لاس ورشی او بیـا ویش قطع شی ، نو ځکه تر هر ویش ورو ـ سته به هغو کسانو چی ښی مځکـی بـه یی تصرف کـړی وی ، کوښښ کاوه چـی نور ویش بس شـی . خو هغو کسانو بـه د ویش بندیـدل د عنعنوی عـرف مخالف عمل باله چـی بدی مځکی به یې په نصیب شوی وی .
دانعام په نامه چـی د ګـډ ملکیت څخه مځکی د دربار په خد مت کـی

ولاړو کسانو ته ورکول کیدی ، دامځکی هم د ویش څخه په امان وی .
په خاصه توګه د هندی کورګانیانو د بارو سره روړدو کسانو د انعام په نامه ملکیتونه په لاس راوړی وواو د با نفوذه خانانو او ملکانو په توګه یی فیوډالی قدرت حاصل کړی و او دوی هروخت دو یش په مخالفت محاذ کـی دریدل .

د انګریز استعمار چی د پښتنو پرسیمو راخپور شو ، د ویش پر ضد یی ډیر پلانونه طرح کړل « څو پـه ۱۸۶۹ کال د پرنګیانو استعمار ویش په خانی ملکیت سره راواړاوه چی په بندو بست سره مشهور دی . ۹۶ »
په ترتیب سره د ویش د الغا له پاره کارپیل شو «په ۱۹۲۹ کال کی د سوات (حکمران ) د خپلـی فیوډالـی اداری په چوکاټ کی هلته چی عمدتاً یوسف زی اقـوام اوسـی د شولـو ( وریجو) کښتونه د ویش څخه خارج کړل ۹۷ »
د باجوړ په سالار زو کی وروستی ویش د ۱۹۶۰ په حدود کی وشو او د هلمند په ګرمسیلونو کی د ۱۹۶۶ کلونو په شاو خوا کی دا دود دمځکو د تصفیی تر مقرراتو لاند ی پای تـه ورسیدی . خو د کندهار د بریځو پـه خیلونو کـی لاتر اوسـه دا ویش د( دود ) تر نامه لاندی دوام لری .
د ویش د منځه تلو په عواملو کی د (ملاتړ ) ویش دود هم بی اغیز ی نه و ، ځکـه دغـه ډول ویش د دی زمینـه برابره کـړه چـی جګـړه مار قوتونه زیاتره دمځکو په تصرف کـی برخه واخلی او هغـه عنعنوی ویش له منځه یوسی چی تولو به مساو ی برخه پکی در لوده .
په ویش کی دمنصفه هیأتونو چل اوفریب هم ددی سبب شوچی دبرخی د ورکیدو له بیری د ویش په ساحه کی اوسیدونکی په دی راضی شی چی ویش نور بند شی .
که څه هم د ویش د بیا ژوند ی کولو له پاره حتی د (روښانی نهضت) موسس او پلـویانـو پـه شپاړسمه او اولسمه ، پیړ ی کـی پـه وینو لـړلی مبارزی وکـړی ،خو څرنګه چـی دا سیستم نور خپل قوت بایللی و باید ځای یی په ځان پسی یو ظالمانـه سیستم تـه پری ایښی وای چی هغه په خصوصی ملکیت کی د کرنی د مځکو واقع کیدل وو .
نور نو دخیل او ویش سیستم دخپلی بقاً له پاره ورځ تر بلی غیر

مساعد شرایط هر کلي کول ، خو دادي زموږ په ژوند کې حتی د لسو پنځلسو کالو را په دې خوا یې وروستي بخري پسي ورتول شول او دا سیستم د یو تاریخي دود په توګه زموږ په تاریخ کې ځای ونیوی.

## د ویش ترمینو لوجي

د ویش دود پر سیستم دبحث پروخت د یو شمیر اصطلاحاتو یادونه کیږي ، چي هغه د ویش په سیستم پوري ځانته ځانګړي مفاهیم لري . د دې له پاره چي زموږد تیري څیړنی سره اصطلاحات په خپلو اصلي مفا ـ هیمو درك شوي وي ، نو دا ضرورت دی چي دغه ځانګړي اصطلاحات په جلا توګه هم توضیح شي .

**۱ ) اشر :**

د ویش په سیستم کي یو شمیر کارونه چي ګډ فعالیت ایجابوي ، د اشر تر نامه لاندي راځي . د ویالو پاکول ، د جمات او اوجري دسیري په کارکي مرسته د اشر په نامه یادیږي‌دا کلمه د ښورواك په بریځو او د ګرمسیلونو په نور زو او بلوڅو کي‌عامه ده او په ځینو ځایو کي یي ( بګاره ) بولي .

**۲ ) انعام او انعام خواره**

انعام هغه ځمکه ده ، چي د عمومي یا ګډ ملکیت څخه د دربار سره وابسته ملك ته ورکول شوي وي .هغه کسان چي دغسي ځمکي لري ، انعام خواره بلل کیږي . دغه دانعام‌ځمکي اکثره دهندي کورګانیانو امراو له خوا وپښتنو ملکانو ته ورکول‌شوي وي ، چي د دوی خاني پر جوړي شوي . انعام خواره په عام ډول په ښه سترګه نه لیدل کیږي او د دوی د انعام ملکیتونه هم په ویش کي نه راځي .

**۳ ) بانډه**

هغه ځمکي چي دشیخ ملي تروېش‌وروسته آبادي شوي او دخښي قبیلو نورو خیلونو پر واړول . د بانډې ځمکي تر ویش لاندي راځي ، خو په اصطلاح په پاخه ویش یعني د شیخ‌ملي د تپه ایي ویش په چوکاټ کي داخلي نه دي .

**٤ ) برخه یا بخره**

دپاخه ویش (دشیخ ملي دویش ) له مخي برخي یا بخره د ویش یو

مقیاسی‌معیاردی چی دپچی څلوېښتمه حصه تشکیلوی . یوه برخه دوی نیمکی یا څلور پاوه کیږی .

**۵ ) بګړی ونډ**

په کروندو کی چی د ویش له مخی‌یوه سړی ته کومه برخه رسیدلی وی هغه ته بګړی ونډ ویل کیږی.

**۶ ) پاو**

په پاخه ویش‌کی پاو دیوی نیمکی‌نیمایی ده اویو پاو څلور میری‌کیږی، چی دویش په مقیاس‌کی یو معیاردی.

**۷ ) پچه**

پچه قرعی ته هم ویل کیږی ،خو په پاخه ویش کی مقیاسی معیار دی چی دڅلوېښتو برخو څخه تشکیل‌شوی وی .

**۸ ) پلرین یا پلرینه**

په ویش کی نسبی معیار دی ، چی د کورنیو څخه د تشکیل شوی واحد په توګه ځای لری .

**۹ ) پلو**

د سیند غاړی ته نژدی د ویش‌ځکه پلو بلل کیږی .

**۱۰ ) پیر**

هغه ستانه او روحانی چی دده په په وسیله ویش کیږی یا د ویش د منصفه هیئت مشر روحانی پیر بلل‌کیږی.

**۱۱ )پیسه**

په پاخه ویش کی پیسه د یو ی‌میری څلورمه برخه ده ، چی څلور کاسیری تشکیلوی ، د معیاری مقیاس‌یو واحد دی .

**۱۲ ) تایین**

په ویش کی نسبی معیار دی ، چی تر پلرینی لاندی واقع وی .

**۱۳ ) تپه**

د قبیلی هغه واحد چی په یوه‌تاکلی ځای کی میشته وی . دشیخ‌ـ ملی په دفتر کی د خښی ټبر ته دخیلونو په حسا ب چی ځمکی ور وویشل شوی ، هغه دتپه وار حساب‌تابع وی . په پاخه ویش کی شیخ ـ ملی دا د کښت ځمکی شپږو تپو ته وویشلی .

۱٤ ) چم
د کورونو په ویش کې چم یو سیمه ایز معیار و ، چې د کورونو مجموعې ته ویل کیدی. هر چم مجموعه وه د یو ټاکلې شمیر کورونوچې دغه کور ته به یې کندو وایه . یعنې د کندوونو مجموعه چم و .

۱۵ ) چوکه
په پاخه ویش کې دمعیاري مقیاس یو واحد و ، چې دا ته څخه تر دیارلسو لویشتو پورې رسیدله . یوه چوکه د یوې میرې دوه سومه برخه جوړوله .

۱٦ ) ځمکه یا مځکه
د خاورې هغه ټوټه چې اوبه پرلګیږي او پټي پر جوړیږي .

۱۷ ) خسنی
کله چې ویش وشي او تر هغه وروسته د دوو کسو یا کورنیو تر منځ پر ویش شخړه راپورته شي ، نو پر هغه بیا پڅه اچول کیږي چې هغه ته خسنی وایي . د خسنی دود په پڅه نه وي، بلکه دډکي (لرګي) په وسیله کیږي چې په موټ کې نیول کیږي .

۱۸ ) دړی
د ویش په کښت کې د وزن یو مقیاس دی ، چې د تخم له پاره استعمالیږي . یوه دړی د کابل په وزن د یوه سیر څخه دری چارکه ته رسیږي .

۱۹ ) دفتر یا دوتر
د شیخ ملي د ویش نوم دفتر یادوتر و. وایي چې هغه دغه ویش په یوه کتاب کې لیکلی و ، چې هغه دفتر نومیدی . په عامه اصطلاح کې هغه ځمکه چې په ویش کې رسیدلې وي ، دفتر بلل کیږي .

۲۰ ) دود یا لوګی
د ټوپك له خولې څخه چې کوم دودراوزي هغه دویش دمعیاري استحقاق مستعار نوم دی . د بریخو په ملاتړویش کې هغه ځوان چې ټوپك استعمالولای شي ، یعنې د مځکې څخه دفاع کولای شي د یوه دود د مځکې استحقاق پیدا کوي چې په ویش کې ورته ورکول شي « په خوست کې بله معنا لري یعنې د کورنۍ غړي چې لوګی یا نغری یې شریك وي په یوه دسترخان سره کښیني . » ( روهي )

**۲۱ ) سپین ږیری یا سپین بگړی**

هغه څوك چې د ویش په منصفه هیئت کې د غړی په توگه برخه اخلی ، سپین ږیری یا سپین بگړی بلل کیږی .

**۲۲ ) سیری**

سیری د کښت هغه مځکه ده ،چې په ویش کې نه راځی . دشیخ ملی په ویش کې سیری یواځی دعامه خد متونو له پاره یوه وقفی توته وه چې د هغې له حاصل څخه به کار اخیستل کیدی. خو ورو، ورو یوشمیر اشخاصو د ځان له پاره هم سیری جلا کړی او د مځکی یوه توته به یې له ویش څخه وایستله او په دایمی توگه به یې د خصوصی ملکیت تا په پر ولکوله .

په لومړی سر کې میاگانو اوپیرانو سیری ځانته واخیستلې . څرنگه چې ویش د دوی تر نظار ت لاندی کیدی، نو دا یو ډول شوکرانه وه چې د بگړی ونډ له خوا و دوی ته ورکول کیده . په دې پسې سپین ږیرو چې ملکان او خانان وو ،هم سیری واخیستلې . پسله هر ویش څخه به یوه اندازه مځکه په سیری کې ورتله او د سیری مځکه به هم هغه ډیر ښه او آباد پټی و .خو ورو ، ورو دغه سیری د ویش د منځه تلو عامل وگرځید . په عمومی ډول دا لاندی سیری موجود ی وی .

**د جمات د تیلو سیری :**

دا جماتونو ته وقفی مځکی وی چې په ویش کې نه راتلی . دشیخ ملی په دفتر کې په هر کلی کې دکندرونو پر سر جماتونه معلوم وو او تر دغه محاسبې لاندی د جماتونو سیری هم معلومی وی چې دوی د جمات دتیلو سیری بللې .

**د اوجری سیری :**

اوجری د کلی د میلمستون حیثیت درلود . د شیخ ملی په دفتر کې دهر کلی د اوجرو حساب هم شوی و او ددغو اوجرو د مصارفو له پاره یوه توته مځکه وقف شوی وه چې دهغې له حاصل څخه به د میلمنو خرڅ کید ی .

**د کسبگرو سیری :**

دکلی هلکانو د تعلیم ، دپښ ،ترکاڼ ، ډم ، جولا او داسې نورو

کسبګرو له پاره هم سیری بیلې‌شوی وی . دغو کسبګرو په عامه خدمتونو کې برخه اخیستله دوی دخپل کار په مقابل‌کی دچا څخه اجوره نه اخیستله ، بلکې هغه دسیری ځمکه چې ورکول شوی وه د ده اجوره وه. دوی هریوه ډیرکارونه پر غاړه درلودل ، مثلاً دم به دلاکی کوله ، ډول به یې‌واهه د جرګې یاواده او یا مړی دښخولو له پاره به یې کلیوال خبرول . دکسبګرو په سیری کې حتی سندر غاړو ته لا هم حق ورکول شوی وو .

**د میاګانو سیری :**

دا سیری پخوا لیری وی خو اوس‌جماتونو ته نژدې دی او د جمات له سیری څخه هم پکی ګډې شویدې .دا سیری میاګانو ، پیرانو ، سیدانو او ملایانو ته ورکول کیږی . دملاسیری ته اماتې سیری هم وایی . دوی ته د ویش څخه د باندې ځمکې‌ورکول شویدې . پخوانی ځمکې چې د دغسې خلکو له پاره وقف کیدې اکثره به للمی وی ، خو اوس هغه ډیری ښې او د اوبو سرکیلی ته نژدې ځمکې د دوی دی .

**د ملکانو سیری :**

دا سیری دویش د نظام د رنګیدوسره منځ ته راغلې دی ، د ویش څخه وتلو دی ځمکو ته خلك سیری‌هم نه وایی . ځکه دوی په زور نیولی دی او بیایی د سیری نوم پرایښی دی او داسې یې څرګنده کړیده چې ګواکې ولس دوی ته د خدمت‌په مقابل کې ورکړیدی . دسالار زو د برم خیلو ملکان دغسې سیری لری‌او دلویو ماموندو دشهزاده خان ځمکې د دغې جملې څخه دی ، چې‌په ویش کې نه راځی . ملکان دغسې ځمکې سر ه‌خرڅوی او رانیسی یې او په میراث له پلرین څخه تابین ته پاتیږی .

**۲۳ ) کاسیره**

د پاخه ویش په سیستم کې دځمکې د اندازې یو مقیاسی معیار ئ واحد دی ، چې د یوی پیسې څلورمه برخه تشکیلوی .

**۲٤ ) کلی**

د محلو مجموعه چې کندرونه پکې‌واقع وی . دا ټاکلی حد نه لری ، کیدای شی چې په یوه کلی کې لږ کندرونه واقع وی ، په بل کې ډیر ځای شوی وی .

۲۵ ) کندی

دقبیلی هغه گروپ چی په خیل کی سره شریك وی اوپه یوه ټاکلی ځای کی اوسی . کندی دټپی سره نژدی مفهوم لری او وایی چی د شیخ ملی ویش پر کندی و .

۲٦ ) کوته

کوته خونه ده ، چی په کندړ کی واقع وی . اوس د کور په ویش کی کوته نه راځی ، خو د دی نامه څخه داسی معلومیږی چی ښایی دا د هغو لویو کورونو د وخت اصطلاح ده چی بیلی ، بیلی کوټی به یی درلودی او یو کهول به پکی اوسیدی . داسی کورونه د گډ کښت په وخت کی موجود وو . ( ف ـ اینگلز ) د دغسی بزگری کورونو په برخه کی وایی : « .... دغسی بزگری کورونو یو لوړمشترك هال درلود چی شاو خوا کوټی پرراگرزیدلی وی اوهری کوټی ته دشپږو څخه تراتو زینو پوری ورپورته کیدی او کهول کورنی به پکی اوسیدلی . د یونانی سکندر په وخت کی د هند وستان په شمال لویدیځو سیمو کی دغسی بزگری کورونه او کهولونه وو ۹۸ »

۲۷ ) کندړ

کندړ هغه کور دی چی په چم کی واقع وی او په یوه ټاکلی وخت کی تر ویش لاندی راځی .

۲۸ ) کور

کور د کندړ په مفهوم هم راځی اویوه ټاکلی ځمکه چی د یوی کورنی استحقاق وی ، هم کور بلل کیږی .

۲۹ ) کورنی

په ویش کی د یو واحد ځمکی استحقاق درلودونکی واحده کورنی ده .

۳۰ ) کورو سر

دا د گډ کار له پاره د وسایلو یا د مرستی معیار دی . مثلاً د ویالی پاکولو له پاره کورو سر یو سړی باید کار ته ولاړ شی .

۳۱ ) محله

د کلی یوه برخه ده ، چی د یوه جمات او اوجری استحقاق لری .

### ۳۲ ) موتی

په کرونده کی د یوه سړی برخه چی بګړی وند وی ، نو د لسو کالـو برخه یی موتی بلل کیږی (۹۹) .

### ۳۳ ) میـر آب

چی دکښت د اوبو دویش مراقبت کوی . د کندهار په ښورواوك کی چی اصـلاً ویش د اوبو دی ، نو هلتـه میرآب ډیره لویه وظیفه لری . دهر کښت د اوبو وخت او استحقاق څار ی‌ده ته د دغه کار په مقابل کی یوڅه اوبه ورکول کیږی . خو اوس دغـه کار د با نفوذه خانانو په لاس کی دی چی دنوروااستحقاق‌هم ځانته تروښوی.

### ۳٤ ) میـره

پـه پاخـه ویش کـی د مځکـی داندازی یومقیاسی واحد دی، چی دیوه پاو څلورمه برخـه تشکیلوی . یوه‌میـره دوه سوه چوکی پـــه ځا ن راګښیبا ســی .

### ۳۵ ) میـا

روحانی سپین ږیر ی چی د ویش‌ناظر وی . میاګان سیری لری چی د میاګانو د سیری په نامه یادیږی .

### ۳۶ ) نیمکـه

د پاخه ویش پـه معیاری مقیاس‌کی دیوی برخی نیمی ته نیمکی وایی. یوه نیمکـه دوه پاوه یا څلور میـری کیـږی .

### ۳۷ ) وار

هغه کلی او ولسونه چی څوکاله پس د یوی علاقـی څخـه بلـی تـه کوچیدلی، دی ته یی‌وار وایه (۱۰۰)

### ۳۸ ) واره ګری

هغـه ویـ ش‌چـی به پـه مځکو یاکورونو وشو، دی ته‌واره‌ګری وایه .

### ۳۹ )ورشو

ورشو پـه څو معنا وو راغلی ده .ډاګ یا میـدان تـه هـم ورشو ویل شویده. للمی مځکی ته هم ورشو ویل‌کیده او څړځای تـه هـم ورشو ویل شویده . هغـه مځکی چی دشیخ ملی‌تر ویش وروسته ودانی شوی ، هغه هم ورشو بلل شویدی .

۴۰ ) ونډه

په ویش کې د یوې کورنۍ استحقاق ته ونډه ویل کیږي .

۴۱ ) ویش

د ځمکې او کورونو د ویشلو سیستم ته ویش وایي ویش چې د پاخه ویش په نامه یاد شي، مطلب د شیخ ملي ویش دی چې په لومړي سر کې یې ځمکه پر شپږو تپو وویشله .

۴۲ ) هسکه

هسکه او پچه یو شی وه چې په ویش کې د ویشلو طریقې ته هم ویل کیږي او یو مقیاسي معیار هم دی .د بنوراوك په برخو کې د هسکې اصطلاح عامه ده .

۴۳) خیل

نسبي واحد دی چې اکثره ویشونه هم دخیل پر اساس شویدي .

۴۴ ) بندو بست

دا د ویش په سیستم کې داخله اصطلاح نه ده ، بلکې هغه نظام و چې انګریزانو د ویش په سیمو کې جاري کړ څو د کبنت ځمکې د خانانو او ملکانو په خصوصي ملکیت کې واقع شوي .

## ماخذونه او توضیحات

۱ )هغه لرغوني د ګډې کرنې سیستم چې د په ځمکه تړلې ټولنې خوا ته یې انتقال کړی وی Archaic social Formation نومیږي.

۲) دکار دطبیعي ویش عمده شاخص دا و چې د نر او ښځې ترمنځ دکار په ساحه کې طبیعي ویش منځ ته راغلی ځکه چې د تولید قوتونه یو څه مخ ته تللي وو، نو داشتراکي ټولنې د بیلو بیلو ډلو ترمنځ د وظایفو په برخه کې یوې ډلې په یوه کار او بلې ډلې په بل کار لاس پورې کاوه. نارینه چې له جسمي لحاظ قوي و ،ښکار یې کاوه . ښځو او زړو خلکو به یو څه سپك کارونه کول دکبانو نیول یا د خوراك وړ ریښو او مندکو راټولول او داسې نور .

۳) د کار لومړی ټولنیز ویش :

دا ویش د حیواناتو د روزنې او د کبنت سره دلومړني آشنایي په وخت

کی منځ ته راغی . د حیواناتو په روزنه کی د شپنیانو تجربو او په کښت کی د لومړنی کروڼکو پوهنه د دی باعث شوه، چی‌کار په تولنیزه ساحه کی وویشی . د کښت په باب‌دا یادونه باید وشی ، چی په لومړی سر کی د حیواناتو روزنکو چوپانانو د حیواناتو د خوراك له پاره په کښت پیل وکړ . وروسته د انسانی خوراك له پاره دغلو دانو کښت پیل شو . په لومړیو غلو ، دانو کی ایړدن کرل کیدل . ځکه د ایړدن دانی چی اوړه کیدی ، د انسان له پاره یی ډوډی برابروله او د بلی خوا کښت یی ډیر زیار نه غوښت او هرزه وښو یی‌وړو ته زیان نه رساوه .

٤) د کار دوهم تولنیز ویش : دا ویش له هغه وخت څخه راپیل کیږی چی د ډول ډول فلزاتو څخه د ابزارونو په جوړونه کی کار واخیستل شو . د دغی مرحلی عمده شاخص دا دی چی په کرنه کی د کوڼ یوم څخه کار واخیستل شو . وروسته یی ځای هغه تیش ونیوی چی څو که به یی له اوسپنی څخه جوړه شوی وه . همدارنګه د ځنګلونو د پاکولو له پاره فلزی وسایل په کار ولویدل او د باروړلو له پاره حیوانات وروزل شول .

٥) مور واکی Matriarchale :

د کار طبیعی ویش او د تولیدقوتونو پرمختیا وښځی ته مهم وظایف ور په برخه کړه او پر هغی د کورنی‌د پیژندنی حساب کیدی . څرنګه چی پلار لا معلوم نه و او مور د هر چامعلومه وه ، نو خیل هم له هغی څخه راپیل‌کیدی. ودغه نظام ته مورواکی‌وایی .

٦) پلار واکی Patriarchale :

دخصوصی مالکیت سره پلار واکی‌نظام منځ ته راغی . نور نو د وینی د رګی ځای اقتصادی اړیکو ونیوی‌او دخیل حساب هم په دغه نظام کی له پلار څخه راپیل کیږی او په کورنیو کی د اولادونو پلار معلوم وی او ښځه ورو ورو له هغه مقامه څخه راکوزیږی چی په مور واکی‌نظام کی ودی ته حاصل و .

٧ ) هاکس هائیوزن ( ١٧٩٢ –١٨٦٦ ) دپروس بارون چی دروسیی د امپراطور لومړی نیکولای تزار له خوا روسیی ته د ورتګ اجازه ورکول

شول او نوموړی د ( ۴۳-۱۸۴۴ )په شاو خوا کی د روسیې د مځکو دویش او بزگرانو د ژوند په باب تحقیقات وکړل او په دی برخه کی یی یو اثر ولیکی چی ( د روسیې د زمینداری په مناسباتو کی د لومړی کمون دبقایاوو ترسیم ) نومیږی .

۸ ) مائیو ررگیورگ لیودویك( ۱۷۹۰ - ۱۸۷۲ ) المانی تاریخ پوه او لرغون پیژند ونکی چی د المان دلرغونی او منځنیو پیړ یو د تعلیم په باب یی د کمون ( مارك ) دپیژندنی په برخه کی کار کړیدی .

۹ ) مورگان ، لوئیس ، هنری( ۱۸۱۸ - ۱۸۸۱ ) امریکا یی نژاد پیژوند وکی ، لرغون پیژوند ونکی او تاریخ پوه چی د امریکایی بومیانو دټولنیز نظام په باب یی ژوری څیړنی کړی وی ، ده د قبیلی تکامل دلومړ ی کمون سازمان په شکل کی وڅیړی . نوموړی د ( لرغونی ټولنی) په نامه یو کتاب لیکلی دی .

۱۰ ) مانیفست حزب کمو نست په مسکو کی د پروگرس د موسسی د۱۹۸۰ کا ل چاپ ۲۶ مخ .

(۱۱) اسلانوف ( ۱۸۹۷ - ۱۹۷۷ )دشوروی اتحاد معروف فیلو لوجست و ، چی د شوروی اتحاد د علومو د اکادمی د اتنو گرافی وانستیتو ت ته منسوب و. ده د افغانی اتنوگرافی، فولکلور او ادبی تاریخ په برخه کی ډیری علمی څیړنی کړیدی او یوشمیر آثاریی په روسی ژبه چاپ شویدی چی ځینی یی دنړی په نورو ژبو او پښتو هم ژباړل شویدی .

۱۲ ) د اسلانوف په تیروتنو کی موږ ډیر لږ څه وینو . څرنگه چی نوموړی محیطی سړی نه و ، نو داتیروتنی یی دومره مهمی هم نه دی . مثلاً په یوه مفصله مقاله کی چی په روسی ژبه لیکل شوی او بیا په انگلیسی ژباړل شویده . دامریکا دمشیگن دپوهنتون له خوا په دی کتاب (Afghanistan Same new approaches) کی چا پ شویده .

د نوموړی کتاب په ۱٤ مخ کی چی د اڅکزیو قبیله نښی ، نو وایی چی مغوی په زمینداور کی اوسی . په داسی حال کی چی اڅکزی د کندهار په کډنی ، روزگان او یو شمیر په هرات او غور کی استوگنه کوی . دهمدغه اثر په ۱٦ مخ کی د پکتیا ځدران، ځاځی، اومنگل هم دخوستوال په ډله کی حسابی . په داسی حال

کې چې خوستوال یوانځي هغه قبایل دي ، چې اصلاً یوانځي په خوست کې اوسي لکه سبرې ، اسماعیل خیـل ،مندوزي او نور . دا چې اسلانوف په یوه بله مقاله کې چې د شوروي اتحاد د علومو اکاډمي په تازه خپاره شوي کتاب Afghanistan past and Present کې خپره شوې،

په ۳۷ مخ کې د بایزیدو روښان قبیله ( اورمړ ) پښتانه نـه بولي دا د ده خاص نظر دی. زه یې دلته نه څیړم.

۱۳ ) وحشت Savagery فریدریك انګلـز د کلتور پـه ماقبل التاریخ مراحلو کـې د وحشت دوره داسې ښيي ، چې په هغه کې انسا ن دا قدرت پیدا کـړ چـې هغـه طبیعي تولیـدات چـې د استفادې لـه پاره تیار وي په ځان پورې تخصیص ور ـ کړي . دغه دوره و درو مرحلو تـه ویشي، چې کښتنۍ، منځنۍ او پورتنۍ په نامه یې یادوي. په کښتنۍ مرحلې کې انسان لا د تودو سیمو د ځنګلـو اوسیدونکی و . په منځنۍ مرحله کې یې اور کشف کړ او په پورتنۍ مرحله کـې د غشي او لیندۍ پـه اختـراع بریالی شول .

۱٤) بربریت Barbarism اینګلـز د کلتور پـه ماقبل التاریخ دورو کې دا دوره هم درو مرحلو ته ویشي، چې دکښتنۍ منځنۍ او پورتنۍ په نامه یې یادوي . دکښتنۍ مرحلې شاخص دا بولي چې کلالي رواج شوه. منځنۍ مرحله په ختیځ کې د حیواناتو په روزنه او په لویدیځ کې دخوراکي نباتاتو په کرنه رواج شوه. پورتنۍ مرحلـه د اومي اوسپنې پـه ویلـې کیـدو پیل کیـږ ي .

۱۵ ) جینز Gens ( خیل ، زی، قبیلـه ) انګـریزي پښتو دکشنر ی په ۱۳۵٤ کـې دپښتو ټولنـې چا پ ۲۷۹ مـخ .

۱٦ ) پـونـالـوا ن کـورنۍ Punaluan Family

دا ډول کورنۍ دوهمـه کورنۍ بلـل کیـږي او ټاکلې خصوصیت یې دادی چـې په کورنۍ کـې سکه ورونه اوخوندې یو له بل سره له واده څخـه منع کیږي . امریکایي نژادپیژندونکي (مورګان ) دا نوم د هاوایي ټاپوګانو دخلکو له نامه څخه انتخاب کړیدی ،په دغه ټاپو کې خلکو دغه کورنۍ ته پونالوان ویل او دغه اصطلاحي نوم اینګلز هم په خپلو ټولو څیړنو کـې استعمال کړیدی .

۱۷ Marx-Engels Selected Works—Vol. 2 Moscow 1958 p. 243.

۱۸ ) کلان Clan د نسبی خپلوی یو اولنی واحد دی چی غړی یی په یوه اساطیری انا یا نیکه پوری تړلی وی . په کلان کی دغه اساطیری انا یا نیکه توتمیك حیثیت لری . کلان دخیل د کلمی سره یو مفهوم لری ، خو خیل د یو قبیلوی واحد په توګه د قبیلی نسبی سازمان د هغه د تولنیزو او اقتصادی خصوصیاتو سره یو ځای په ځان کی رانولوی او کلان زیاتره د هغه خصوصیت ښکارندوی دی چی دقبیلی د سازمان د کلتور عقیدوی برخه اړه پوری لری .

۱۹) زمینه تکامل اجتماعی نویسندگان و ، ك میتروپولسکی ، ی . زیرو فسکی و ، ل کرف . ترجمانان م. مینو خرد، ح کامرانی، چاپ تهران ، ۱۳۵٤ صفحه ۱۹ .

۲۰ Confedracy-Phratry- Genea په دغو نومونو کی جینا د خیل . فریتری د ورونو خیلونو او کانفدر یسی د تبرونو د اتحادیی مفهوم افاده کوی .

۲۱ Natio-Curio-Gentes (Nation) دلته هم دیونانی تولنی په شان جینتیز د خیل ، کیور یا دخیلونو مجموعه اوناتیو د تبرونو اتحادیه ده .

د نیشن د کلمی ننني مفهوم چی دملت پرځای استعمالیږی یو وروستی پراخ مفهوم دی « په لاتینی کی Natio-onis د پیدا ینبت مفهوم افاده کوی . Cognetio د وینی اړیکی ته او Cognatus هغه چاته ویل کیږی چی د وینی اړیکی پالی . په منځنیو پیړیو کی دغه د Natio کلمه زړی فرانسوی ته د Nacion او انګریزی ته د Nacioum په شکل داخله شوه چی د خلکو دکلمی سره مترادفه وه په وروستیو وختونو کی د Nation کلمه ځینی جوړه شوه چی د قبیلی او یوه داسی وفاق مفهوم یی درلود چی اوسیدونکی یی پر یوه سیمه اوسی ( پاکستان کی قومتین د یوری ګنکوفسکی لیکنه اردو ترجمه په ۱۹۷٦ـ کی د مسکو چاپ ۱۹ مخ )

۲۲ ) فرهنگ غفاری (فارسی بـه فرانسه ) جلد چهارم چاپ تهران

۲۳ ) Национальность _ Племя _ Род

۲٤ ) کابل مجلــه د ۱۳۵۷ کال داسد گڼه د مجلی د مخ فرعی پاڼی د ( ف مخ ) د داکتر گل محمد نور زی‌مقا لـه .

۲۵) د افغانستان پخوانی تاریخ ،لومړی جلـد د احمد علی‌کهزاد لیکنه پښتو ترجمه د کابل چاپ ۱٤۳ مخ .

۲٦ ) پورتنی اثر پورتنی مخ .

۲۷ ) د غوری مرغی د کره موقعیت‌په باب تر اوسه هم د څیړنکو ترمنځ اختلاف دی ځینی وایی چی دسلیما ن‌د غرو په لړیو کی ده ځینی وایی چی د کندهار په ارغستان کـی ده او یو شمیر کسان وایی چی د غور په سیمه کـی واقع ده خو زیاتره دا نظر پـه اکثریت تائید شویدی چی غوره مرغه د کیسی (سلیمان د غرو ) پـه لمنو کی ده . په لرغونو متونو کی د کند او زمند د اولادی د هجرت په برخـه کی د غوری مرغی نوم ډیر یادیږی . اوس هم په پیښور کی پښتانه وایی‌چی موږد غوری مرغی څخه راغلی یو.

۲۸ ) خښی یا ښاخـی یا شیخـا پـه نسبی لړی کی د یوسف زی اومنـدړ پلار دی چی د کندزی او د خرښبون‌پر لار وسړبن ته رسیږی . دخښـی اولاده له غوری مرغی څخه لیږدیدنه وکـړه او د کندهار پر لار غزنی تـه راغلـه ، د غوریـا خیلـو سـره یی‌واړول . کله چی یی دغوریاخیل سره د اختلاف په وجه له دغه ځایه کابل‌تـه لیږدیدنه وکـړه نو د خښی لـه اولادی څخه یوسف زی په کابل کـی‌ډیر آباد شول . په اولسمه پیړی‌کی الـغ بیک بن ابوسعیـد گورگانی دهغوی مشران اعدام کړل او دا قبیله په هجرت تر سوات پوری راغله چی‌د سوات تر اخیستلو وروسته د دغه قبیلی یوه روحانی شیخ ملی د محکـو د ویش قانون د دفتر په نامه تدوین کـړ .

۲۹ ) Agora پـه لـرغونی‌یونان کـی د کنفدریسی د منځ تـه راتلو سره منځ ته راغله او دا یوه‌جرگه وه‌چی په هغه‌کی به دتبرونو غړی راتولیدل او تصمیمونه به یی‌نیول . په دغه جرگه کی به مشر ( Basileus ) انتخابید ی . په یونان کی د دولت د سازمان لومړ ی موسسی پـه دغـی جرگـی ځـان راخرگند کـړ .

۳۰ ) د خپلواکی تړون (بلوڅ) په ۱۳۵۱ کال کـی د قبایلو د مستقل ریاست خپرونه د کابل چاپ د ٥٦ ـمخ مقابل چارت .

۳۱ ) پښتو انګلیسي ډکشنري ۲۷۹ مخ .
۳۲ ) پښتو انګلیسي ډکشنري ۲۷۹ مخ .
۳۳ ) پښتو انګلیسي ډکشنري ۸۰ مخ او انګلیسي پارسي حییم ډکشنري په ۱۹۶۰ کې د تهران چاپ ۷٤ مخ .
۳٤ Marx' Engels Selected Works Vol'2' P248
۳۵ ) د افغانستان ژبې او توکمونه د دوست محمد دوست لیکنه دکابل چاپ : دسوغدي ، یغنوبي ، مونجاني او ویستاني ژبو څخه ځلور کلمې دغه اثر د ۲۷۶ـ ۲۵۵ ـ ۲٤۱ مخونوڅخه را اخیستل شویدي .
۳۶ ) پښتانه د تاریخ په رڼا کې د ظفر کاکا خیل لیکنه د پیښور چاپ ۱۲۶۹ مخ .
۳۷) د ورمېږ د وینې خپلوی یوقبیلوی اصل دی ( که په پلرینه کې کوم یو د یوچا له خوا ووژل شي ،دغه دورمېږ د وینې خپلوان توله په مغه شریك ګڼل کیږي چې باید غچ واخلي . همدارنګه د غچ اخیستلو پر وخت که اصل قاتل په لاس ورنسي، نو د مغه دورمېږ د وینې هر خپل چې په لاس ورشي ، خپل غچ ور څخه اخلي . ) د پښتني قبیلو اصطلاحي قاموس د ابراهیم عطائي لیکنه د افغانستان د علومو د اکاډمې له خوا په ۱۳۵۷ کې د کابل چاپ ۱٤۲ مخ .
۳۸ ) اوه سرونه پریکول :دا یوه اصطلاح ده که یوڅوك د چا په مځکه دعوه وکړي یا پر یو چا د ښځې دبدنامي دعوه وشي ، نو د ځان ددفاع له پاره به ( د اوو سرونو پریکول )دود پر ځای کوي . د اوو سرونو پریکول یو تاکلی قسم دی چې دمځکې ددعوا کونکی یا دښځې په مسئله کې متهم ته ورکول کیږي . دغه کسان مکلف دي چې د قسم له پاره داسې کسان حاضر کړي چې د ده سره یې دورمېږ وینه شریکه وي . (دپښتني قبیلو اصطلاحي قاموس ۱۰ مخ )
۳۹ ) Marx Engels Selected works Vol'2'P244
٤۰ ) Grote انګلیسي مورخ ( ۱۷۹٤ ـ ۱۸۷۱ )
٤۱ ) Marx' Engels Seleceed works Vol'2' P246
٤۲ ) Tacitus publius
( ۵۵ ـ ۱۱۷ ) رومي مورخ چې دجرمانیك اقوامو په باب یې څیړنې کړیدي .

۴۳ ) یرغمل :کله چی دوو قبیلو ترمنځ پریکړه وشی . جګړه په روغه واړوی ، نو د دی له پاره چی بیادغسی واقعه تکرار نه شی ، نو د یوی مدی‌له پاره دواړی خواوی سړی په ګروی کی سره‌ورکوی . دغه عمل ته یرغمل وایی . ( دپښتنی قبیلو اصطلاحی قاموس ۳۰۲ مخ ) .

۴۴ ) د مارکس اینګلز منتخبات په انګریزی ژبه ـ دمسکو چاپ ۲۸۹ مخ .

۴۵ ) د پورتنی اثر د پورتنی مخ‌لمن لیك .

۴۶ ) پښتانه د تاریخ په رڼا کی د ظفر کاکا خیل لیکنه ، د پیښور چاپ ۱۲۷۰ مخ .

۴۷ ) هدماتی یوه اصطلاح ده ،کله چی د دووکورنیو یا دوو خیلونو ترمنځ مړی سره وشی ، نو دغی بدی‌ته هدماتی وایی ( دپښتنی ق.بیلو اصطلاحی قاموس ۲۹۹ مخ . )

۴۸ ) کاړی او سمل په اړیدو کی‌دوه ګوندونه دی او په دغه نامه په ورکزو اوبنګښو کی هم ګوندونه شته : ( د پښتنی قبیلو اصطلاحی قاموس ۲۲۵ مخ )

۴۹ ) New college standard Dictionary د نیویارك چاپ ـ ۸۹۵ مخ.

۵۰ ) ( فیل phyle ) د کلمی د تشریح له پاره پخپله دغه انګریزی متن وړاندی کیږی :
(The largest political suod ivision among the incicnl Athenion corresponding to the Roman (Trib)

۵۱ ) الفو نستو ن انګریزی مؤرخ An account of the king dom of caubl کتاب چی دلومړی ځل‌لپاره په ۱۸۱۵ کی چاپ‌شوی دی.

۵۲ د وږمی مجله د ۱۳۵۶ کال ،دوهمه ګڼه ـ ۷۵ مخ .

۵۳ ) ترون یو قومی تعهد دی چی‌دایمی او موقتی ډول ترل کیږ ی . یو شمیر خیلونه چی نژدی سره واقع‌وی په مختلفو مواردو کی ترون سره کوی . مثلاً (خرسین او سیدګی ) چی‌د وزیرو سره نژدی واقع دی ، نو دوی خپل ترمنځ ترون سره لری ( دقبیلو اصطلاحاتو قاموس ـ ۵۵ مخ).

٥٤ ) د زردشت د ژوند نیټه پوره نه ده معلومه ، خو « د زردشتي کتابونو د روایاتو له مخې داسې ده چې نوموړی په ٦٦٠ ق م کې زیږیدلی په ٦٤٠ ق م کې منزوی شو . داوخت یې عمر ٢٠ کلن ؤ او په دیرش کلنۍ کې یې دلارښوونې دعوه وکړه . په ٥٨ ق م کې چې ارجاسب تورانی پر بلخ حمله وکړه . نو د بلخ په اورتون کې زردشت د براتراکرش تورانی په لاس ووژل شو » (تاریخ مختصر افغانستان جلد اول تالیف استاد حبیبی چاپ کابل صفحه ١٢ ).

٥٥ ) افغانستان در شاهنامه دد کهزاد اثر د کابل چاپ ١٠١ مخ .

٥٦ ) پښتانه دتاریخ په رڼا کې ــ ١٢٧٠ مخ .

٥٧ ) د ننګرهار د پخوانی والی محمد ګل سلیمانخیل په حواله او د شینوارو د ځو سپین ږیرو په تائید.

٥٨ ) د مارکس اینګلز منتخبات په انګریزی ژبه دمسکو چاپ ــ ٢٤٥ مخ

٥٩ ) مقدمه ابن خلدون د ګناه ــ ابادی ترجمه دتهران چاپ دوهم جلد ــ ٢٥٩ مخ .

٦٠ ) د مارکس اینګلز منتخبات دد مسکو چاپ ــ ٢٥٧ مخ .

٦١ ) پورتنی اثر ــ ٢٧٦ مخ .

٦٢ ) پښتانه ــ دوهم توک په ١٣٥٠ کال کې د قبایلو د مستقل ریاست خپرونه ــ د کابل چاپ ، ددوهم مخ مقابل چارت .

٦٣ ) پښتانه ــ لومړی توک ، په ١٣٤٩ کال کې د قبایلو د مستقل ریاست خپرونه ، دکابل چاپ ٥٤ مخ.

٦٤ ) پورتنی اثر ٥٤ او ٩٤ مخونه .

٦٥ ) پښتانه د تاریخ په رڼا کې ــ د١٢٨٥ مخ د لمن لیك ٧ لمبر .

٦٧ ) آریانا ویجه هغه سیمه ده چې آرین قبایل ورڅخه رالیږدیدلی دی . ددغه ځای په تعین کې دنظریو اختلاف دی ، ځینې یې ( پامیر او بدخشان ) ته ورګرمه بولی . ځینې یې د خوارزم مځکه ګڼي . ځینې وایی چې په هغو سیمو کې واقع وه چې په سیردریا، زرفشان اوآمو اوبیده. په اویستا کې چې شپاړس آریایی سیمې ښیی نو دآریانا ویجې نوم هم اخلی . « دپښتنو ادبیاتو تاریخ ــ لومړ ی توك دپوهاند حبیبی لیکنه په ١٣٥٤ کال کې د کابل چاپ ٣٤ مخ »

وروستی تحقیقات دا ښیی ، چې دهندو اروپایی خلکو دا راتیتیدلو ځای

د لویدیځې اسیا شمالي برخې دی چې په دې لړ کې ماوراً قفقاز او د عراق شمال ښوول شویدی . (کندهار مجله ۱۳۰۹ کال ۹ ـ ۱۰ گڼه ۳۱ مخ د شوروی اتحاد د علومو د اکاډمی دنشریی سوشل ساینس له مجلی څخه ترجمه )

۶۸ ) پکت ، پارسوا او بهارت دآریایانو دری لوی قبیلې‌وی چې پکت او بهارت جنوبی هندوکش ته راتیری‌شوی او پکت قبیله چې کوم ځای و اوسیدله هغه پکتیکا یا پکتیا وه‌چې د پکت ، پښت او پښتون نومونه هم اړه ورسره لری . بهارت قبیله دپنجاب پر لار هند ته ورتیر شوه چې دهند پخوانی نوم هم بهارت دی .د پارسوا قبیله ایران ته ولاړه چې د پارس نوم هم له دغه نامه سره‌اړه لری .

۶۹ ) کیس چې په عبدالرشید هم‌شهرت لری د پښتنو په جینولوجیکی سلسله کې یوه افسانوی څیره ده‌چې د پښتون کام لومړی نیکه بلل شوی دی. دده دری زامن ( سړبن ، بیټ یا بیټنی او غرغښت ) د پښتنی قبیلو نیکه گان وه .

۷۰ ) افغانشناسی در عرصه چهل‌سال د مسکو چاپ ۲۳ مخ

۷۱ ) تواریخ حافظ رحمت خان دپیر معظم شاه اثر دی چې د مغولی اکبر د عصریو پښتون مورخ خواجو ملیزی‌له تواریخ افاغنه څخه راتسوید شویدی او حافظ رحمت خان د نامه سره تړل شویدی .

۷۲) د لازاك د پښتنو یوه لویه قبیله وه چې دخښی قبایلو تر ورتگ پخوا د کابل دسیند په مسیر کې له کابله تر پیښور او سوات پورې میشته وه . « دا دکرلانی تبر یوښاخ دی چې څیړنکو یې د پیښور په حوزه کې اوسیدل تر دوهمی هجری پیړی پوری رسولی دی . دپنځلسمی پیړی په دوران‌کی داقبیله دیوسفزوسره په جنگ شوه څو پسله یو لړ جنگونو څخه سره وپاشل شوه ـ( کابل مجله د ۱۳۶۰ کال ۳ گڼه ۴۸ مخ )

۷۳ ) سوات نامه د خوشحال ختك‌اثر د پوهان حبیبی سریزه د کابل چاپ ۳ مخ

۷۴) پورتنی اثر ۱۶ مخ .

۷۵) همدغه اثر ۱۷ مخ .

۷٦ ) په ۱۹٦۱ کال کې دشوروی اتحاد دخارجي ژبو دموسسی له خوا د Fundomentals of Marxism Leninism p 17 په نوم کتاب ۱٦٥ مخ.
دمسکو چاپ.
۷۷ ) په ۱۹۸۱ کې دشوروی اتحاد Afghanistan past and Present دعلومو د اکاډمی خپرونه د مسکو چاپ ۳٤ مخ
۷۸ ) زمینه تکامل اجتماعی د میتروپولیسکی او ...... پوهانو لیکنه پارسی ترجمه ـ دتهران چاپ ٦۳ مخ.
۷۹ ) د مارکس اینګلز منتخبات په انګلیسی ژبه د مسکو چاپ دوهم جلد ، ۲۱۹ مخ .
۸۰ )د مسکو چاپ Afghanistan past and present ۳٤ مخ
۸۱ ) د شیخ ملی دفتر دا اثرچی معروف شیخ ملی ته منسوب دی اوس نشته ، خو خوشحال د هغه یادونه داسی کوی :

په سوات کی دوه څیزه خفی دی که جلی یومخزن ددرویزه دی بل دفترشیخ ملی

دا اثر چی اوس ورک دی داسی ویل کیږی چی میجر راورتی هم لیدلی ؤ.
۸۲ ) تواریخ حافظ رحمت خان دپیر معظم شاه اثر د پیښور چاپ مقدمه ۲۷ مخ .
۸۳ ) سوات نامه د خوشحال خان د کابل چاپ مقدمه د پوهاند حبیبی ۱۸ مخ .
۸٤ ) د پښتنو اقتصادی اجتماعی جوړښت د رسول امین او حکیم تنی ـ وال دسیمه ایز ریسرچ قلمی نسخه د پښتو څیړنو د بین المللی مرکز له خوا ۱۹ مخ .
۸٥ ) celt (Selt ar kelt) د منځنی او لویدیځی اروپا پخوانی اوسیدونکی چی د سیمی په اعتبار ایرلنډ ، سکات لینډ ، ویلز او بریتن احتوا کوی .
۸٦ ) ( welsh )د ویلز Wales ) اوسیدونکی .
۸۷ ) مارکس اینګلز منتخبات ، دمسکو چاپ په انګریزی ژبه ، دوهم جلد ۲۸٤ مخ .
۸۸ ) Caput cognationis
۸۹ ) مارکس اینګلز منتخبات ، ۲۸٥ مخ ـ دوهم جلد .
۹۰ ) Rundale

۹۱ ) Gewanne

۹۲ ) مارکس اینګلز منتخبات ۲۸٦ مخ ـ دوهم جلد .

۹۳ ) سوات نامه د کابل چاپ ۱۹۰ مخ .

۹٤ ) Mark System

۹۵ ) مارکس اینګلز منتخبات ، ۲۹۳ مخ ، دوهم جلد .

۹٦ ) د روښان یاد ، د پښتو ټولنې له خوا د کابل چاپ ۱۳۵۵ کال ، ۲٦۷ مخ .

۹۷ ) Afghanistan past and Present د شوروی اتحاد دعلومو داکاډیمی خپرونه ، دمسکو چاپ ۳٤ مخ .

۹۸ ) مارکس اینګلز منتخبات ، په انګریزی ژبه ـ د مسکو چاپ ، دوهم توک ۲۱۹ مخ .

۹۹ ) سوات نامه د خوشحال خان ـ ختک په ۱۳۵۸ کال کی د افغانستان د علومو اکاډیمی چاپ ، د پوهاند حبیبی مقدمه ۱۹ مخ .

۱۰۰ ) تواریخ حافظ رحمت خان ، د پیر معظم شاه لیکنه ـ د پېښور چاپ مقدمه ۲٦ مخ .